بسم الله الرحمن الرحيم

مخزن الاسلام — تذکرة الابرار والاشرار — ارشاد الطالبین

# دپښتو د ادب تاریخ

دلوی څښتن په نامه دپښتو ادب د یو لنډ تاریخ په ویلو پیل کوو، مګر ښایې چه لومړی پښتو او پښتون وپېژنو، بیا د ادب او ادبیاتو په معنی ځان پوه کړو، او پس له هغه په مطلب لاس پورې کړو.

## پښتون

د پښتون قوم د آرین له قومونو څخه یو قوم دی چه ددې وطن اصلي او پخواني اوسېدونکي دي. د تاریخ بیانونکي وائي چه ټول آریائیان پخوا یو ځای اوسېدل او یوه ژبه یې درلوده. دوی تقریباً څلورزره کاله (ق، م) له خپل اصلي مسکن یعنې د آمو دریاب له سرچشمو څخه (۱) راوکوچېدل او په باختر (بلخ) کښې یې یو ښکلی مدنیت جوړ کړ، پس له هغه یې د ډېرېدو په وجه له دغه ځایه هم لېږدونه شروع کړه، ځینې د هرات پرخوا د پارس خاورې ته ولاړل، ځینې د هندوکش په شمالي او جنوبي لمنو کښې د آباسېند ترخنډو پورې خواره شول او ځینې تر آباسېند پورې وتل او د هندوستان په ځنګلو کښې آباد شول. اولی برخې ته ایراني او دوهمې برخې ته مرکزي او باختري او درېمې برخې ته هندي آرین وائي. دغه مرکزي او باختري آریائیانو ډېرې قبیلې درلودې، چه یوه مهمه ډله یې (بخت = پکت = پښت) وه.

په ریګوید کښې چه د هندي آرینو یو مشهور کتاب دی او په (۱۹۰۰ ق، م) یا (۱۴۰۰ ق، م) کښې لیکل شوی دی د آریائیانو د لسو قبیلو د جګړې ذکر راغلی دی. په دوی کښې یوه قبیله د (پکت = پښت) په نامه یاده شوې ده. دارنګه په ویدا کښې «پکتها» د پکت د پاچا په ډول هم څو ځایه راغلی دی.

د یونان لوی مورخ (هیرودوت) چه په (۴۸۴ ق،م) کښې تېر شوی دی، ددې قوم نوم اخستی دی او وائي، چه د (پکتي = پکتویس = پکتیس) غښتلي او مړني خلق د (پکتیکا = پکتینا) (۲)

---

(۱) - که څه هم د آریائیانو په اصلي ځای کښې اختلاف دی، مګر دا نظریه نسبتاً قوي ده.

(۲) - دا نوم بیا وروسته په پښتونخوا بدل شوی دی، او د شپږم قرن په ادبیاتو کښې په همدې شکل لیدل کېږي ښکارندوی د غیاث الدین غوري معاصر وائي:

پښتونخوا ښکلي زامي چه زغلي هند ته + نو اغلیه پېغلې کاندي اټنونه

پاکتیا ) په مملکت کښې اوسی . بطلیموس هم چه د یونان یو جغرافیه دان ؤ د پښتنو هیواد ( پکتین ) بللی دی چه د پکتیانو مسکن ؤ . د یورپ ډېرو مستشرقینو او پوهانو لکه ( لاسین - ترومپ - گریرسن ) اونورو ، دویداپکهت اود یونان پکتویس ) له موجوده پښتون سره تطبیق کړی دی اودا خبره ئې منلی ده چه دغه د ( پکت = پښت ، پکتویس ) قوم چه دری نیم زره کاله د مخه ئې ذکر راغلی دی همدا موجوده پښتانه دی . صرف یونانیانو دخپلی لهجې دتغیر موافق (پکتی = پکتیس = پکتویس) لیکلی دی. په دې ډول دالفاظو، کلمو اونوموداوښتلو له مخه هم دفیلالوژی علماؤداخبره منلی ده چه د(پښت = پکت = پخت = بخت - بخدی = پخدی) نومونه ټول یواصل او یوه ریشه لری .

اود پښتون (۱) کلمه هم لهدغو څخه راوتلی ده نوله دې تاریخی اونورو دلیلونو څخه دانتیجه راوځی چه پښتانه د آریائیانو یوه مهمه څانگه ده ، چه لومړی په بخدی ( بلخ ) کښې اوسېدل بیاله هغه ځای څخه دخپل نامه ( بخت = پکت ) اوخپلی ژبې سره د پښتنخوا په علاقو کښې خپاره شول اودغه خپل نوم ئې تردې وخته پورې وساته .

دمغلو دزمانی تاریخو نو پښتانه بنی اسرائیل بللی دی ، مگر داخبره صحیحه نه ده ځکه چه بنی اسرائیل د یعقوب (ع) اولاده ده اوله هغه نه وروسته پیدا شوی دی اود « پښت » قوم نوم ترهغه د مخه په ( ریگوید ) کښې ذکر شوی دی . پښتون ته په هندوستان کښې ( پټان ) وایی چه غالباً ( د پښتان ) کلمه ئې اړولی ده . دغزنوی پاچاهانو دوخت اونورو راوروسته تاریخو کښې ورته افغان ویلی شوی دی .

گریرسن وایی : چه دافغان (۲) نوم پرپښتنو ایرانیانو ایښی دی اصلاً دوی د « پکهت » قوم دی چه په ( ریگویدا ) کښې ئې ذکر راغلی دی مگر په خپله پښتانه بې له پښتون څخه بل نوم نه پیژنی اونه ئې ځانته وایی نویقیناً ویلای شو چه دا نور نومونه پری د نورو له خوا ایښودل شوی دی . دامو وویل چه د پښتون قوم له ډېر پخوا څخه موجود او ددې وطن زاړه او سېدونکی دی خودوی داسلام نه را وروسته ډېر مشهور شوی اود اسلام دقبلولو نه پس ئې داسلام د پاره ډېر خدمتونه کړی دی د اسلام په ابتدا کښې سړبن ، غرغښت او بیټ یا بټنی بابا د پښتنو مشهور نیکونه تېر شوی دی دا درې واړه ورونه وو او ډېر اولاد لری . ځینی پښتانه داسلامی فتحانو په لښکرو کښې په فتحه هندوستان ته تللی او بیا اکثر هم هلته میشت شوی دی .

دوی په هندوستان کښې لوئې لوئې پاچاهی هم کړی دی لکه چه بهلول لودی ، سکندر لودی شیر شاه سوری ئې مشهور پادشاهان وو .

بیا په دوی پسې دمغلو د پادشاهی دور راغی پس له هغه په قندهار کښې د هوتکو پښتنو پاچاهی شروع شوه چه حاجی میرویس خان ئې نوموړی مشر ؤ .

---

(۱) - داسی معلومیږی چه دویدا د « پکهت » اصلی تلفظ « پښت » ؤ په اول کښې « پښت » قوم او « پښت تون » ئې داوسېدو ځای ته ویل کېده ځکه چه (تون) ځای ته وایی . مگر وروسته دا کلمه پس له تحقیقه په مفرد صورت ددغه قوم د پاره استعمال شوه چه جمع ئې پښتانه راځی داهم کېدای شی چه « ون » دنسبت د پاره له (پښت) سره یوځای شوی وی .

(۲) - اوغان په ارمنی ژبه کښې دغرو اوسېدونکو ته وائی .

دهغوټولو په وخت کښې ایران هم د پښتنو په لاس کښې ؤ بیا د سدوزو او ارزاغی لومړی پادشاه ئې احمدشاه بابا دی چه تر هند وستانه ئې د پښتنو یوه زبردسته پاچاهي جوړه کړې وه، آخر په (۱۲٤۲ھ) کښې د پښتنو پاچاهي محمد زیو ته ورسېده ددې کورنۍ لومړی پاچا امیر دوست محمدخان وو. دا پاچاهي تراوسه پورې په دغه کورنۍ کښې چلېږي.

په موجوده وخت کښې پښتانه له دریاب آموه تر اباسینده پورې، هرځای آباد او خواره واره پراته دي، ټول په یوه ژبه پښتو غږېږي د یوه دین اسلام تابع دي. په عاداتو رواجونو او خویونو کښې ئې یواله بله هیڅ تو پیر نشته. ددوی دهر سړي د پراخ تندی، ښایسته څېرو غنمي رنګونو، تورو وېښتو ښخه توره، مړانه زړه ور تیا، غیرت، ناریښتوب، عزم اراده، ایمانداری، دینداری، صداقت، وفا او نورلو ډاو سپېڅلي خویونه څرګندېږي پښتانه په خپله آزادۍ او خپلوا کۍ مین او په خپله خاوره او خپل وطن له سره تېر دي دغو ټولو صفتونو ته دوی پښتو، پښتونولي، او پښتنواله وايي او هر پښتون پردغو او صافو پېژندل کېږي.

## پښتو

انسانان د یو بل د پوهولو او پوهولو د پاره یوه مهمه وسیله لري چه ژبه ده ژبه هغه الفاظ او کلمات دي چه دهغو په واسطه هر اولس د خپلو مقاصدو تعبیر کوي او یو بل ته پرې خپل مطالب ښکاره کوي، څومره چه په دنیا کښې ملتونه او اولسونه ډېر دي نو هغو مره ئې ژبې هم زیاتې او ډېرې دي؛ د دنیا په ژبو کښې ځینې داسې دي چه الفاظ ئې خو را لنډ او یو هجائی دي او د اسم فعل او حرف فرق ئې نه کېږي، دې ژبو ته مجرد ژبې وايي لکه د افریقا د زنګیانو یا د چین او سیام ژبې.

ځینې نورې دي چه هغه هر راز وسیع تعبیرونه لري او الفاظ ئې له څو هجو څخه مرکب دي په دې کښې ځینې د تصریف او اشتقاق قابلیت نلري او په بنا کښې ئې تغیر نه راځي لکه ترکي او مغلي ژبې - او ځینې د تصریف او اوډ واو قابلي دي چه یوه کلمه په کښې ډېر شکلونه پیدا کوي، دې ته متصرفه یعني او ډېدونکي ژبې وايي.

دا پیادوې شعبې لري یوه شعبه ئې سامي او حامي ژبې دي، چه آرامي، کلداني، عبراني، لیبي، حبشي ژبې لهدې شعبې څخه دي: بله شعبه ئې آریایي ژبې دي آریائي ژبې بیا په خپل منځ کښې دوې څانګې لري چه یوه اروپائي او بله ایشیائي څانګه ده دا دواړې څانګې په ږغونو او الفاظو کښې یو له بله فرق لري او په دې لحاظ دا روپا آریایي ژبو ته (سینتم) او د ایشیا آریایي ژبو ته (سیتم) وايي. فرانسوي، انګلیسي، جرمني، روسي او دیورب ټولې مشهورې ژبې د (سینتم) له ډلې څخه دي او سانسکریت، پرا کریت، زند، اوستا، پهلوي، زړه پارسو، پښتو په (سیتم) کښې داخلې دي لکه چه معلومه ده ټولو آریائیانو د مخه یوه متحده ژبه درلوده چه غالباً (آریك) نومېده دا ژبه تقریباً تر (۲٤۰۰ ق م) پورې موجوده وه که څه هم اوس ئې څه معلومات نشته، کوم وخت چه آریائیان له یو بل نه جلاشول نو پس له څه مودې ئې ژبې هم سره بېلې شوې او د هرچا لهجه ځانله یوه مستقله ژبه شوه

لەدغی ژبی څخه سانسکریت، اوستا او زړه فارسو جوړی شوی دی، پښتو هم له دغی اصلی آریایی ژبی څخه راوتلی ده. ددی خبری یو مهم علمی دلیل په پښتو کښی دپخوانو آریائی الفاظو وجود دی لکه چه پخپله د (آریا، آرین، آریانا ویجه - آریاورشه) کلمو ریشه په پښتو کښی تراوسه موجوده ده دکتور جیگر المانی وایی چه آرین له (ار) څخه مشتق دی چه په سانسکریت کښی داصل او بنیاد په معنی دی دارنگ (آر) دکرنی په معنی هم دی.

نو (آرین - آریا) چه دواړه نسبتی صفات دی دشریف او اصیل او یاد کرونکی او زارع معناگانی ورکوی، په آریائیانو کښی زراعت یو شریف کسب و نو زارع ته شریف هم ویل کیدای شی، لکه چه څرگنده ده (آره) په پښتو ادب کښی داصل په معنی راغلی ده ملا الف هوتك (۱۰۱۹ هـ) وایی (دی له آره ونباغلی - څه که تو په ویر نتلی) ددغی کلمی سره دپښتو دگرامر مطابق دنسبتی صفت علامی (ین، یا) لگیدلی دی او (آرین، آریا) تری جوړ شوی دی لکه له خاوری څخه خاورین او له جل څخه جلیا، بله د (آریانا ویجه) کلمه ده چه آریائیانو به خپل مسکن او ټاټوبی ته ویله دا کلمه په اوستا کښی هم راغلی ده وایی چه (اویجه) په قندهار کښی اوس هم دمځکی او سر زمین په معنی مستعمله ده بله د (آریاورشه = ورته) کلمه ده چه دهندارینو دخپل مسکن دپاره استعمالوله د (ورشه) کلمه اوس هم د آریه ؤ په مرکز او اصلی وطن کښی د (ورشو) په شکل موجوده ده چه (مرتع او چراگاه) ته وایی هر کله چه دوی د یو نه کلی او زراعت سره مینه درلوده نو خپل وطن به ئی یوه ښکلی ورشو بلله، دا کلمه شاید بیا په هند کښی په (ورته) بدله شوی وی، له دغو کلمو څخه دپښتو رابطه له اصلی آریائی ژبی سره څرگندیږی دپښتو په باب کښی داروپی پوهانو او مستشرقینو هم خپلی پلټنی ښکاره کړی دی دوی ټول پدی متفق دی چه پښتو یوه آریایی قدیمه ژبه ده، ترومپ وایی چه پښتو د آریایی ژبو یوه مستقله څانگه ده چه نه په ایرانی او نه په هندی څانگو کښی ږی دانظریه فان سپیگل، داکتر هارنل او گریر سول هم منلی ده والتر بیلیو وایی چه پښتو دسانسکریت خورده راورتی دپښتو او اوستا او سانسکریت د کلماتو ترمنځ پوره مشابهت او نژدیوالی ثابت کړی دی دارنگ پروفیسر کلیپره او دورن روسی هم پښتو یوه آریایی ژبه بولی او وایی چه دانه په الفاظو کښی دسامی ژبو سره څه مشابهت لری او نه په قواعدو کښی ئی دار مستقر هم پدی نظریه دی مگر دی ئی د زند او اوستا سره نژدی بولی خلاصه دا چه ډیرو دلیلو او تاریخی سندو له مخه دا خبره ثابته ده چه پښتو یوه زړه آریایی مستقله ژبه ده او د اوستا او سانسکریت سره دخورولی نسبت لری (۱)

اوستا او سانسکریت دوی مشهوری آریایی ژبی دی چه داولی مرکز بلخ او ددوهمی مرکز هندؤ، پښتو په کلماتو او لغاتو کښی دسانسکریت او اوستا سره ډیر نژدیوالی لری او ډیر لغات ئی سره شریك او یو شان دی. مثلاً (شپه - انگار - څمکه - سپین) چه په سانسکریت کښی هم (شپا - انگار - جما کا - سپینه) بلل کیږی دغسی نور ډیر لغات ئی هم سره شریك دی.

---

(۱) پدی مخو کښی دپښتو ادب دتاریخ له لومړی جلده استفاده شوی ده چه دحبیبی لیك دی

ښتو د «پښت» قوم ته د نسبتي واو په زياتوالي منسوبه شوې ده ، او دا قاعده په پښتو کښې عامه ده لکه فارسو چه فارس او ديگانو چه ديگان ته منسوبيږي ، مونږ دغه ويلی دی چه «پښت او پښتون» يو شی دی نو په دې لحاظ ويلای شو چه پښتو د پښتون قوم ژبه ده او دا قوم په همدې ژبه پيژندل کيږي ، له کوم وخته چه تاريخ د دی قوم نوم ساتلی دی له هغه وخت نه ورسره د دې ژبې وجود هم ضروری دی دا خبره دغه ثابته شوه چه پښتون يو آريائی قوم دی چه په ريگويد کښې ئې ذکر راغلی دی نو په دې اساس د ژبې تول پوهان پښتو يوه قديمه آريائی ژبه گڼي او د اوستا او سانسکريت (١٤٠٠ ق ، م) همزولې ئې بولي دوی وايي چه پښتو هم د اوستا او سانسکريت پشان د آريائيانو د اصلي ژبې يوه څانگه ده . مگر دا په يقين نه ده معلومه چه د پښتو قديمي اوزوړ شکل څنگه و ؟ ځکه چه د هغه وخت کوم تحريری نمونه په لاس نشته غالباً دا سې معلوميږي چه د زمانې په تيريدو ئې خپل زوړ شکل بدل کړيدی او دې موجوده شکل ته رارسيدلی ده . دا هم په يقين ويلای شو چه پښتو په دې موجوده شکل د اسلام نه دمخه هم موجوده وه . ځکه چه د اسلام په اول کښې چه کم اشعار ويل شوی او زمونږ لاس ته را رسيدلی دی هغه ډير پاخه او متين دی او په يوه داسې ژبه دلالت کوی چه بايد لږ ترلږه يوه يا دوه پيړۍ دې پرې اوښتې وی .

## ادبی اصطلاحات

**ادب** : د عربو په لغت کښې د پوهې ، زيرکی ، بلنې او د هرشي د اندازې د ساتلو په معنی‌ؤ راغلی دی او په اصطلاح کښې ادب پر دوه ډوله دی يو نفسی ادب دی چه اخلاقي ، فضيلت او ښيگړې ته وايي او بل درسی ادب دی چه له دې څخه مطلب په ښه طريقه ويل او ليکل خپل مطالب ښکاره کول دی .

د ادب علم : د ادب علم په اوله معنی د اخلاقو له علم څخه عبارت دی . او په دوهمه معنی د ادب علم هغه پوهنه ده چه د ويلو ، ليکلو او ښې وينا ډولونه راښيي او د نظم او نثر حالات ښه والی بدوالی او نوری مرتبې بيانوی ، په دې لحاظ هغه ټولی پوهنی چه سړی ته د وينا ډولونه په ښه طريقه ليکل او ويل زده کوی د هغه ادب علم باله کيږي . هر کله چه نظم او نثر د علومو د بيان ، د تاريخ د ليکلو ، او د پوهولو را پوهولو دوې لويې لاری دی . او په دې واسطه خپل مطالب او خيالات ښکاره کول د ادب غايه او غرض گڼل کيږي . د جديد ادب په مفهوم کښې د انتقادی روح ارل هم داخل دی .

اديب : اديب په لغت کښې ، يوه زيرك ، رابلونکی او د هرشي د اندازې ساتونکی ته وايي .

او په اصطلاح کوی اديب هغه څوك دی : چه په ادبی علومو کښې د پوهې خاوند وی او د دغو علومو په اصولو برابر نظم او يا نثر ويلی او ليکلی شی ، اديب بايد يو داسې ملکی څښتن وی چه د هغې په واسطه ښه او بد ، ټيټ او لوړ کلام وپيژندلی شی او په خپله هم قادر وی چه له هرې معنی څخه په پوښه ، خوږ او خوندور عبارت تعبير وکاندی . لنډه دا هغه څوك چه د هغه تحرير او تقرير د لسانی علومو په اصولو مطابق وی اديب باله شی .

ادبي علوم : هغه علوم چه دژبې خدمت کوي او دهغو په واسطه دنثر او نظم په فن کښې مهارت پیدا کیږي ادبي او یا لساني علوم دي ، دادب پوهانو دا وروسته علوم ته دادب علوم بللي دي :
( لغت ـ صرف ـ اشتقاق ـ نحو ـ معاني ـ بیان ـ عروض ـ قافیه ) دا اته ئې اصول دي
( خط ـ انشا ـ تاریخ ـ دشعر فن ـ محاضره ) او داسې نور ئې فروع بلل کیږي .

ادبیات : هغه نظم او نثر چه دادبي علومو په اصولو برابر او خوندور وي هغو ته ادبیات ویل کیږي یعنې هغه متلونه ، خوازه اشعار ، او ښه بیانونه ، غوره وینا گانې چه په هره زمانه کښې دژبې پوهان او ادیبان وائي او یا ئې لیکلي دژبې ادبیات بالله شي ، ادبي علوموته هم ادبیات وائي .

دادب اقسام : ادب پر دوه قسمه دی یو ته نظم او بل ته نثر وائي ، دمشرق خلق نظم ته شعر هم وائي مگر دیورپ دخلقو په نظر کښې شعر عام دی ، او ځنې نثرونو ته هم شامليدای شي .

شعر : دشعر په لغت کښې پوهې او خبریدو ته وائي او په اصطلاح کښې هغه خوندور کلام دی چه وزن او قافیه ولري . اروپایان هر هغه خوندور کلام ته چه دیو ښه خیال او تاثیر لرونکی وي شعر وائي که څه هم وزن او قافیه ونه لري دشعر غوره برخې درې دي .

۱ـ اخلاقي شعرونه : هغه دي چه موضوع ئې پند ، نصیحت او یا داسې نور وي لکه داخون درویزه دمخزن ځینې برخې ، درحمان بابا او خوشحال خان په دیوانو او داسې نورو دیوانونو کښې هم اخلاقي اشعار شته ځینې اخلاقي افسانې چه په هغو اخلاقي غرض لیکل شوی وي هم په دې قسم کښې داخلیږي .

۲ـ وصفي اشعار : هغه دي چه شاعر پکښې دطبیعي شیانو او دزړه دجذباتو نقشه ویستلی وي لکه دپسرلی ، ژمی ، لمر او سپوږمۍ او دعشق دحالاتو بیانونه درحمان بابا ، خوشحال خان او نورو ټول عشقي او غنائي شعرونه په دې برخه کښې داخل دي . دښکارنامې مشهوره قصیده چه دپسرلی صفت دی هم په وصفي شعر دی چه یو بیت ئې دا دی :

دپسرلی ښکلونکی بیا کړه سنگارونه　　　بیائې واونیل په غرونو کښې لالونه

۳ـ قصصي اشعار : هغو ته وائي چه شاعر په کښې تاریخي واقعات بیان کړي وي یا ئې ځینې خیالي قصې په نظم کړې وي لکه په فارسي کښې شهنامه او په پښتو کښې دریا خان ، محمود نامه ، دغازي محمد جان خان قصه یا دملا نعمت الله دقصو کتابونه . اروپایان اخلاقي اشعار په تعلیمي ( دیداتیك ) اشعارو کښې داخل بولي نو یو بل قسم اشعار لري چه هغو ته تمثیلي ( درامانیك ) وائي تمثیلي اشعار هغه خوازه او دلچسپ مضامین دي چه دنمایش او ښودنې په صحنه ، یعنې په تیاترونو او سینماگانو کښې وایه شي او مقصد ئې عملاً ښودل کیږي . دا قسم اشعار لا تر اوسه په پښتو کښې غوره مثالونه نه لري .

نثر : په لغت کښې پاشلو ته وائي او په اصطلاح کښې هغه کلام دی چه دوزن له قید څخه خالي او آزاد وي . نثر دمعنې په لحاظ په درې قسمه دی .

ـ هغه خبرې اترې چه مونږ ئې دیو بل سره دپوهولو راپوهولو دپاره کوو .

۲ - خطابه (وینا) هغه تقریر او وینا ده چه پوهان او مشران ئې د لویو مهمو مقصدو او داوریدونکو د قانع کولو دپاره په مجلسو او ټولنو کښې کوي دا قسم نثرونه که څه هم په پښتو کښې ډیر ویل شوي دي ، مګر تحریري نمونې ئې په لاس نشته په اروپا کښې خطابه د ادب یوه مهمه نوعه بلل کیږي او ډیر اقسام لري لکه سیاسي ، دیني ، حقوقي ، علمي ، ادبي او داسې نوري خطابې .

۳ - تحریر (ښکل) هغه نثر دی چه د علمونو ، مطلبونو او کتابونو د لیکلو دپاره استعمالیږي تحریري نثر بیا ډیر قسمونه لري لکه تاریخي ، قصصي مذهبي او نور په پښتو کښې د تاریخي نثر مثال دافضل خان تاریخ مرصع او د قصصي نثر مثال د منشي احمد (ګنج پښتو) او د مذهبي نثر مثال داخون قاسم فواید الشریعه او نور دي .

د خلکو د حالاتو بیان (بیوګرافي) هم په تاریخي برخه کښې شاملیږي نن ورځ انتقاد هم د ادب یو مهم جز ګرځیدلی دی وائي چه تنقید باید د یو اثر اصلي روح او ماهیت ته متوجه وي مګر دا برخه په پښتو کښې لا تر اوسه کمه ده د لفظ په لحاظ نثر په دوه ډوله دی یو هغه دی چه قافیه نه لري ، دا قسم آزاد او بې قافیې نثر بالهشي بلل هغه دی چه د قافیې التزام پکښې وي یعنې جملې ئې په آخر کښې سره قافیه داري وي دې قسم ته قافیه دار او مسجع نثر وایي مګر کامل نثر ئې اول قسم دی په موجوده وخت کښې ټول لیکونه ، کتابونه او اخبارونه په همدغه آزاد نثر لیکل کیږي د قافیه دار نثر نمونه دا ده :

ښې ویلې دي رحمت دې وي په ده ، مرګ به ورشي وسړي وته ناګهان .
نشته په دنیا کښې د سړي تل د تله مقام ګوره د دغې زمانې آدمیان -

نظم : په لغت کښې د مرغلرو پیلوته وائي او به اصطلاح کښې هغه کلام دی چه موزون او قافیه داروي په پښتو کښې د لفظ او ظاهر په لحاظ دوه قسمه نظمونه موجود دي یو هغه دی چه د عربي او فارسي نظمونو په قاعده ویل کیږي او د عربي او زانو تابع وي دېته عروضي نظمونه وائي او هغه دا دي (قصیده - غزل - رباعي - قطعه - مثنوي - مربع - مخمس مسدس مثمن - معشر - مستزاد - ترجیع بند - ترکیب بند)

بل قسم هغه دی چه د عربو د اوزانو او شعري اصولو تابع نه وي بلکه ځانله مخصوص طرز او طریقه لري د پښتو ملي نظمونه ویلی شي (۱) نومونه ئې دا دي (لنډۍ ناره ، نیمکۍ لوبه بګتۍ - بدله چاربیته سندره)

متلونه او نقلونه : متلونه او نقلونه د پښتو ادب یوه غوره برخه ده او په نثر کښې داخلیږي متلونه په لنډو الفاظو کښې هغه فصیحې جملې دي چه یوه ښه جامعه او پوره معنی ورکوي . په ادب کښې د متلونو د معنی د هغو د منشا او سبب او د استعمال د ځای پیژندنه ضرور ده مثال ئې دا دی (چه څه کري هغه به ریبي - بدعمل د لاري مل)

د ژبې او ادبیاتو تاریخ : په دې باید پوه شو چه هره ژبه د زمانې د تغیراتو تابع ده ، ډیر شیان شته چه د ژبې په بدلون ، ترقي او پرمخ تګ او یا تنزل او ټیټوالي کښې تاثیر لري

(۱) اول قسم ته کلاسیکي او تحریري او دوهم ته رومانتیکي او شفاهي ادب هم ویلی شو .

چه مهم‌مهم ئې زمانه ، محیط ، حکومت اومذهب کـښل کیږي په‌دې تغیرونو کښې کـله‌یوه لهجه په‌بله اوړي، کـله نوي لغتونه رابیداکیږي او زاړه ورکیږي کـله پوشان مطالب رواج مومي او کـله‌بل‌شان نوکه‌چیري یوسړی له اول څخه دیوی ژبې دحالاتو او تغیراتو بیان راواخلي اودهغې دترقی او اوهـتیا یادتنزل اوکښته‌والي ټولي مرتبې دزماني دتأثیر اودنیتي دپیوډلو سره بیان کړي دادژبې تاریخ بلل کیږي دژبې په تاریخ کښې دوه بحثه شامل‌دي اول ئې دکـلمو دپیدایښت اودصیغو دجوړولو اوراویستلو بحث‌دی چه‌دېته فقه اللغته وایې دوهم ئې په‌ذخیره اوثروت یعنې، په‌علومو اوادبیاتو کښې بحث کول‌دي چه دېته دادب تاریخ وائې (۱) دادبیاتو تاریخ دېریوعام مفهوم‌لري اوبه عامه معنی دیوملت دعلمي ادبي فـکري ترقي او یا تنزل دحالاتو بیان ته دادبیاتو تاریخ بلل کیږي .

نو په‌دې اعتبار دادبیاتو تاریخ دهري دوري دحالاتو ښوونـکی، اودهر ملت دافـکارو آینه ده مـگر به خاصه معنی دشاعرانو او لیـکوالو ، کـتابونو او آثارو دحالاتو اود ژبې داذب ددورو بیان‌ته دادب تاریخ وایي .

دپښتو تاریخ دوه برخې لري یودژبې تاریخ‌دی چه‌هغه داسلام نه‌وړاندې زمانې‌ته راجع دی اوبل دادب تاریخ‌دی چه‌هغه داسلام له اولو وختوڅخه شروع کیږي مونـږ هم به دې دوهمه برخه کښې غږیږو اوبخپل مطلب یعني دادبیاتو په تاریخ پیل کوو .

پدې برخه کښې به دهر وخت په‌شاعرانو ، لیـکوالو، کـتابونو، شعر اونـظم او دهغو دترقی اوتنزل په‌موجباتوبحث کیږي اوهره دوره به بیله بیله ښیو .

## دپښتو دادب دوري‌اوعصرونه

هر کـله چه هره ژبه اودهغې ادب دسیاسي، اجتماعي، او دیني حوادثو تابـع بلل کیږي اودهر عصرادب دبل‌عصر له‌ادب نه‌ضرورجلا او بیل وي نوځـکه ښایي چه دپښتو ژبې دادب تاریخ دزماني په‌لحاظ په‌څلورو دورو وویشو :

اوله دوره : له دوهمې هجري پېړۍ ۷۱۸ع څخه شروع اوتر ۹۰۰هـ - ۱۴۹۴ع پوری چلیږي (دسوریانو ، غوریانو او لودیانو عصر)

دوهمه دوره: له‌۹۰۰هـ تر (۱۱۰۰هـ - ۱۶۸۷ع پوری‌ده (دبابراودهغه داولادي زمانه)

دریمه دوره: له (۱۱۰۰هـ) څخه تر (۱۲۵۰هـ - ۱۸۳۴ع) پوری رارسیږي (دهوتـکو اوسدو زیو زمانه

څلورمه دوره : له(۱۲۵۰هـ - ۱۸۳۴ع ) څخه رایه‌دې خوا شروع شوی ده (دمحمدزو عصر اواوسنۍ دوره )

---

(۱) تاریخ جلال الدین همائی .

## اوله دوره له ۱۰۰ هـ - تر ۷۱۸ ع څخه تر ۹۰۰ هـ تر ۱۴۹۴ ع پورې

موږ د پښتو د تحریري ادب تاریخ، د دوهمې هجري پېړۍ څخه شروع کوو ځکه چه د پښتو کم اومړی شعر چه لاس ته راغلی دی هغه په (۱۳۹ هـ) کښې ویلی شوی دی، نو دادی ددې دورې د شاعرانو په بیان لاس پورې کوو.

## ددې دورې ادیبان او شاعران

امیر کروړ جهان پهلوان: امیر کروړ د امیر فولاد سوري زوی دی. امیر پولاد د ملک شنسب له زامنو څخه و. چه په غور کښې ئې پادشاهي کوله، امیر کروړ په (۱۳۹ هـ - ۷۵۶ ع) د غور په مندیش کښې پاچا شو. دی یو تکړه غښتلی کلک او محکم سړی و په یوه تن به د سلو تنو سره جنګېده نو ځکه کروړ او جهان پهلوان بلل کېده.

په خزانه د تاریخ سوري په حواله لیکي «چه دا امیران له پېړیو څخه په غور کښې وو، او دغه (سور) اولاده د: چه د (سهاك) له پښتو» امیر کروړ د پښتو یو زبردست شاعر دی. وایي چه دی یو عادل، ضابط سړی او د ښې وینا خاوند و، او هر کله به ئې شعرونه ویل - هغه وخت چه په جنګو کښې ئې ډېرې فتحې وکړې نو یو زبردست حماسي شعر ئې وواېه چه «ویاړنه» ئې بولي د دې شعر یو څو بندونه دادي!

زه یم زمری پر دی نړۍ له ما اتل نشته - په هند و سند و پر تخار و پر کابل نشته

بل په زابل نشته - له ما اتل نشته

غشی د من مې ځي بریښنا پر میرخمنو باندې - په ژوبله یونم یرغالم پر تښتېدونو باندې

په ماتېدونو باندې - له ما اتل نشته

زما د پریو پر خول تاوېږي هسک په نمنځ و په ویاړ - داس له سوومې مځکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ

کړم ایوادونه اوجاړ - له ما اتل نشته

زما د توري تر شپول لاندې دي هرات و جروم - غرج و بامیان و تخار بولي نوم زما په اودوم

زه پېژندویم په روم - له ما اتل نشته

پر مروز ما غشی اوني داري دښمن را څخه - د هریوالرو د پر خنو ځم تېښتې پلن را څخه

ړیې زلمن راڅخه - له ما اتل نشته

خپلوو ګړو لره لور پېرزوینه کوم - دوی په ډاډینه ښه بامم ښه ئې رو زنه کوم

تل ئې ودنه کوم - له ما اتل نشته

پر لوی یو غرومې وینا درومي نه په ځنډو په تال - نړۍ زما ده نوم مې بولي پر دریځ ستایوال



دا شعر د پښتو یو ډېر قیمتي، پوخ او متین شعر دی، کلمات ئې سهم جن دي، د پښتنوالي د زړورتیا او شجاعت اصلي خیالات پکښې ښکاره او څرګند دي. وزن ئې هم ملي او د پښتو له خالصو اوزانو څخه دی. د پښتو ډېر پخواني لغات پکښې راغلي دي لکه: اتل = نابغه او پهلوان، من = عزم اراده: میرخمن = دښمن. ژوبله = جنګ، یونم. = ځم، یرغالم = یرغل کوم اودوم = سپاس - دښن = دښمن، پلن = پیاده، زلمن = دلاور اور =

رحم ، بامم = پرورش ورکوم ، دریغ = منبر : ستایوال = مداح .

دامیر کروړ دشعر دپوخوالي او متانت څخه ثابتیږي چه پښتو داسلام ترمخه هم خامخا شعر او ادب درلود ، مگر ترڅو پورې چه بله پخوانۍ نمونه ونه وی پیداشوی ؛ نو د شعر دپښتو لومړی شعر او امیر کروړ د پښتو اول شاعر گڼل کیږی . شیخ کته په خپل کتاب «لرغونی پښتانه» کښې لیکلی دی چه امیر کروړ په (۱۵٤ هـ) کښې مړشوی دی .

ابو محمد هاشم : دی په (۲۲۳هـ) کال دهلمند په (سروان) کښې زیږیدلی دی او بیا ئې په (بست) کښې له عالمانو څخه درس ویلی دی . ابومحمد په عربی ، پارسی او پښتو کښې شعرونه ویلی دی دمشهور عربی ادیب (ابن خلاد) شاگرد ؤ ، او د هغه ډیر عربی اشعار ئې په پښتو نظم ترجمه کړی دی . دده دیوه شعر څو بیته دادی :

ژبه هم پټه وینا کاندی چه ئې وینه دخاوند په لاس کښې زر او در همونه
ژبور وراله ورځی وینا نـې اروی ددرهم خاوندان تل وی په ویا ړونه
درهم ژبه ده که څوك ژبه ور کیږی ده وسله که څوك پرې کاندی قتالونه

وایی چه ابو محمد دعربی شعرونو دفصاحت او بلاغت په بیان کښې په پښتو ژبه یو کتاب لیکلی ؤ چه د (سالوو زمه) نومیده ، دی تخمیناً په (۲۹۷هـ) په (بست) کښې وفات شوی دی .

شیخ رضی : شیخ رضی دشیخ حمید لودی وراره ؤ دشیخ حمید کورنی له (۳۵۱ هـ) څخه تر (۳۹۰ هـ) پورې دهند په ملتان کښې حکومت درلود . شیخ رضی یو نیك سړی او د پښتو ژبې ادیب ؤ . وایی چه دی خپل تره شیخ حمید لودی د پښتونخوا غروته د اسلام د تبلیغ د پاره استولی ؤ هغه وخت چه دخپل تربور (نصر) له الحاد څخه خبر شو نو دا شعر ئې ور واستاوه :

د الحاد په اور دې تر پلل گروه دې زمونږ وکوراوه
مو نـږ و نهلی په زیارته تا په تـورو تـوراوه
لرغون والـی گرو هیدلی چـه دې گوښـی اړاوه
لودی ستا په نامه سپك شو که هر څومـره درناوه
نصره نـه مو ئی لـه کهاله لـو دی نـه ئې پـه کاوه
زمونږ رغاده ستاله گروهه د ورځلوی پـه رغاوه

له دی شعره دشیخ رضی رح د دینداری سپیڅلی افکار ښکاره کیږی او ډیر زاړه لغات پکښې راغلی دی لکه = گروه = دین ، وکوراوه = وران کړ ، لرغون = اول . گروهیدلی = معتقد کیدی کاوه = کړه ، رغا = بیزاری ، ورځلوی = قیامت .

امیر نصر لودی : دشیخ حمید لودی زوی دی ، دپلار دمرگ نه ورسته دهغه پرځای امیر شو . وایی چه دی د ملحدانو عقیدې ته او ښتی ؤ ، دا پښتون پاچا هم د پښتو ژبی ادیب او شاعر دی دالاندی شعر ئې له «پټی خزانی» څخه را اخلو چه دشیخ رضی د دغه ورواندی شعر په ځواب ئې ویلی دی :

دالحاد په تور تورن شوم زه لرغون خو ملحد نه یم
زمـاد ښنه هسی تورا کړی کـه مـلحد یم د د ښنـه یم
لـه اسلامـه نـه تر پلمـه تـو رانو نه په تر پـلـه یم

گروه می هغه ارغوني دي ... اوس هم کروړ په ارغونه یم
د لو دي زوی سنتي یم ... د حمید د لوړ کها له یم
دد ښنو و ینا مغبزه ... زه لو دي یمه خو زه یم

په دې شعر کښې هم ځینې پښتواني لغات لکه: تورن = تهمتي ، ارغون = اول ، تورا = تهمت ، کروړ = محکم ، مغبزه = مه اوره راغلي دي .

شیخ بیټني یا بیټ بابا: د پښتنو یو مشهور نیکه دی . سلیمان ماکو په خپل کتاب تذکرة الاولیا کښې وایي چه شیخ بیټني یو نیك سړی او لوی بزرګ ؤ ـ د کسي په غره بانډې واسېده، تول شپه به د خدای په عبادت بوخت ؤ اودا مناجات به ئې په ډېره زاري وایه :

لویه خدایه ، لویه خدایه ... ستا په مینه هر ځایه
غرو لاړ دي درناوي کښې ... تول ژوي په زاري کښې
د اته دي د غرو لمنې ... زمونږ کېږدي په کښې پلنې
داو ګړی ډېر کړی خدایه
لویه خدایه ، لویه خدایه

دلته اېږ زمونږ اور بل دي ... ووړ کور ګی دي ووړ بورجل دي
مینه ستا کښې موږ مېشته یو ... با د چاپه مله تله نه یو
هسك او ځمکه نغښته ستاده ... د مېړو وده له تاده
دا پالنه ستاده خدایه
لویه خدایه ، لویه خدایه


بیټ بابا

بیټ بابا دا شعر یوه ډېره مؤثره او خوږه دعاده، د پښتو په ملي وزن یو ساده او روان شعر دی ، د پښتو پښتواني خالص لغات لکه ژوی (حیوان) هسك ( آسمان ) پکښې راغلي دي . مضمون ئې د پښتونو آریائي سندرو پشان دی لکه چه په ریګویدکښې هم د خدای د محبت ، د هغه دیاکي او واکمنی او د کورنیو او لا دونو د ډېر والي مناجاتونه راغلي دي .

د بیټ بابا د ژوندانه وخت له ۳۰۰ ه څخه تر ۴۰۰ ه پوري تخمین کېږي ؛ دی د پښتانو غوریانو معاصر دی ، چه له غزنویانو د مخه ئې پاچاهي کوله .

سلیمان ماکو وائي ؛ چه د بیټ نیکه ورونه او زامن د (کسي) په غره کښې اوسېدل چه اوس ئې د سلیمان غر بولي . د بیټ نیکه د مرګ نېټه او مزار ښه نه دی معلوم ، مګر د ننګرهار په تور غره کښې د بیټ بابا په نامه یو زیارت شته ، او ګمان کېږي چه همدا بیټ بابا به وي .

اسمعیل سړبني : دی په اصل کښې د بیټ نیکه زوی دی مګر ځکه چه د خپل تره سړبن په کورلوی شوی ؤ ؛ نو په سړبن مشهور شوی دی . اسمعیل د (۴۰۰ ه) په حدودو کښې ژوندی ؤ دی هم لکه د خپل پلار یو لوی بزرګ ، عارف ، سترستانه ، او د پښتو ژبې یو ښه شاعر او ادیب ؤ . دده یو شعر سلیمان ماکو په خپله تذکره کښې راوړی دی . یوه بله خوږه ناره ئې په «پټه خزانه» کښې راغلی ده . دا شعر ئې هغه وخت چه دا کازوی (خرښبون) ور څخه جدا کېده ؛ ویلی دی چه یو څو بیته ئې دا دی .

کهیون دي یون دي مخکښې پېلتون دي ... له کسي غره څخه ، ځي خرښبون دي
که وروره وروره ، خرښبون وروره ... ته چه پېلتون کړې ، زما ویرته ګوره
د خدای دیاره ، خرښبون یاره ... چه هېر مو نکړې ، زموږ کهول وا هره
زړه مې رېږي ، یارمې بېلږي ... پېلتون ئې اوردی ، ځان پرې سوځېږي



خرښبون : د سړبن زوی دی . پټه خزانه د پخوانو تار یخونو په حواله لیکي چه دی په (۴۱۱ ه) په (مرغه) کښې وفات شوی دی . (۱) دا زمونږ لوړ نیکه هم د پښتو یو ښه شاعر او ادیب ؤ او تل به ئې د خدای عبادت کاوه . کوم وخت چه دی دا سمعیل څخه جلا کېده یعنې د کسي له غره څخه غوړی مرغې ، ته تلو نو دا سمعیل د شعر په ځواب کښې ئې د مربع (څلوریز) په ډول یو خوږ اه سوزه ډك شعر وواېه ، د غه شعر په پټه خزانه کښې راغلی دی چه دسر بند ئې دا دی :

پېلتا نه ناره مې و شوه په کور باندې ... نه یو هېږم چه په څه وې پښې په وړاندې
له خپلوانو به بېلېږم په سرو ستر ګو ... دواړه ستر ګې مې په ویڼو دي ژړاندې



دا دواړه شعرونه د پښتو خالص اشعار او په ملي وزن دي . په دې اشعار و کښې د پخوانیو آریانانو د خپلوۍ او دوستۍ پاك احساسات لیدل کېږي او دا ترې څرګندېږي چه زمونږ نیکونو د یو بل سره ډېره مینه درلوده ، او د یو بل په پېلتون به ئې سوزناك اشعار ویل .

شیخ اسعد : پلار ئې محمد نومېده ، دی دا میر محمد سوري ، همعصر او هغه د دربار شاعر ؤ ، په غور کښې اوسېده او هلته ئې د سوري خاندان په پاچاهۍ کښې ښه عزت درلود ، شیخ اسعد په (۴۲۵ ه) کال په بغنین کښې وفات شوی دی د شیخ کته روایت دی : «چه شیخ اسعد د پښتو یو زبردست ادیب ؤ او ډېر ښه اشعار به ئې ویل» ده دا میر محمد

---

(۱) وائي چه خرښبون دری زامن درلودل (کاسي ــ کند ــ زمند) دوی هم په (مرغه) کښې او سېدل مګر بیا وروسته د کاسي اولاد کسي غر او پېښور ته ، او د کمند او زمند اولاد د ننګرهار او پېښور لوتو ولاړل او هوری مېشته شول .

سوری په وفات چه د سلطان محمود غزنوی په بند کښې مړ شوی ؤ، یوه سوز ناکه قصیده (بولله) ویلی ده، دا قصیده په پښتو کښې یوه لوړه بې جوړې قصیده ده چه یو څو بیتونه ئې دلته راوړو:

د فلك له چارو څه وکړم کو کار | زمو لوی هر گل چه خاندی په بهار
هرغټول چه پــه بیدیا غوړېده وکا | ریژوی ئې پاڼې کاندی تار په تار
ډېر مخو نــه د فلك څپېړه شنه کــا | ډېر سرونه کاتر خاور ولاندی زار
دوا کمن له سره خول پریباسی مړشی | دبې وزلو وینې توی کاندی خونخوار
څه تیری څه ظلم کاندی ای فلکه | ستا له لاسه نه دی هیڅ گل بې له خار
ستا له لاسه دی پراته ژوبل زگیروی کا | هر پلوته تښی زړو نه په ځار ځار
کله غړ ځوي وا کمن له پـلا زونو | کله کښېنوې په خاورو کښې بادار
زموبرزړونودې نن بیا یو غشی وویشت | ودې ژوبلــه په دې غشی هــزار
په سوریو باندی وېر پرېووت له پاسه | محمد واکمن چه ولاړه په بل دار
په دې وېر دغوور گړی تور نمری شول | په دې ویرر نیا تیــاره شو له دښار
لاس دې مات شه ای فلکه چه دې وکا | محمد غوندی زمری دمړینی ښکار
شین زړگی فلکه ولی لا ولاړ یې | ای دغور غرونو پر څه نشوی غبار
مځکې ولې په رېږ دلو نه پرېــوزی | لاندی باندی شه چه ورك شی دا اشعار
چه زمری غوندی واکمن ځی له جهانه | نور څوك نه کړی په نړۍ باندی قرار
سخ په تــا ای محمده دعــور نمر وې | په نړۍ به نهوی ستــا د عدل سار
ته په ننگه وې ولاړ په ننگه مړ شوې | هم پر ننگه دې پر ننگه کاځان جار
که سوری دې په تنگ وېر کاندی وېرمن شول | هم به ویاړی ستا په نوم ستا په اعتبار
په جنت کښې دې وه تون زمونږ واکمنه | هم په تادې وه ډېر لــور دغفــار



په پښتو کښې لمړی قصیده چه لاس ته راغلی ده همدا داسعد سوری قصیده ده دا قصیده د پښتو دپخوانو اشعار وله خوزا پخو اولوړو اشعار څخه گڼل کیږی چه د پښتو سوچه لغات پکښې راغلی دی لکه: زمولوی - مړاوی کوی، واکمن - بادشاه، پلاز - تخت ژوبلل - زخمی کول، نمری - جامی وېرمن - غمجن، تون - ځای، لور - رحم.

شیخ تیمن: پټه خزانه دشیخ بستان بړیڅ د (بستان الاولیا) په حواله لیکی چه تیمن دغور په کجوران کښې اوسېده او بیا د سلطان علاؤالدین حسن په زمانه کښې (۵۰۰ - ۵۵۰ هـ) وفات شوی دی داهم وایی چه دی د کاکړ بابازوی ؤ، دده پر نامه یو قوم هم شته چه تایمنی ئې بولی اوځان د کاکړو یوه پښه گڼی.

دشیخ تیمن داور وسته شعر په پټه خزانه کښې راغلی دی چه ښه خوند ورملی وزن اری.

که شیــخ رنــا دنمــر خپره شــوه | زمــا په کور دویــر نــاره شوه
د بېلتــون ورځ تــوره تیــاره شوه | زغ شو ناڅا په چه بېلــتون راغی
زړه می له دې ویرنی شین دی | په ژړا ژاړم څه ناورین دی

زرغون لـه او ښو مې سا دین دی — په نول (۱) نولېږم چه تاخون راغی
نه به بیا یم نه به بیا راشي — نه به تیا ره شپه ز مارنها شي
نه به شهي را تـه پخـلا شي — بیلېږي هرئي اوس دیون راغی
دخښتن یـار دی هېر مې نکړي — اغلیـه مـخ چه په یـا نه کـړي
اور بـل دې پر پښوه وانه کړي — پر ماد بل اور کړ وون را غلی



تایمني : دغور یانو ددربار یو ښه شاعر دی . تایمني دسلطان غیاث‌الدین غوري یو مدح ویلی ده له دغی مدحی نه معلو مېږي چه دی ددغه پاچا وخت کښې ( ٦٠٥ هـ ) ژوندی ؤ، دغه ستاینه په مثنوي ډول ده او دپښتو اوږدي مثنوي ورته ویلای شو چه یو څو بیته ئې دادی :

نن زه غږ ږم پـه صفت دسلطان — چه دی پادار نړی ملك دجهان
دفیروز کوه او غـور رڼا لهده ده — هم د تېرو تـورو رڼا اله ده ده
چه توره وکـاږي چرتون کي خالی — غنیم ئې کـله کړي په توره سیالی
غیاث‌الدین دغـور زمري عالیشان — دا سلام دین ده په توره روښان

داشعر هم د پښتو له پخوانو شعرونو څخه یو روان اوساده شعر دی دتوري او مړانۍ خیالات اودغور د دربار لړئي او عظمت ځیني څر گند یږي .

شکارندوی : شکارندوی هم دغوریانو ددربار شاعر دی چه دشهاب‌الدین غوري (۵۸۰هـ) په دربار کښې یو مخور او قدرمن سړی ؤ دی یو ډېر زبردست شاعر او په قصیدو ویلو کښې استاذ دی پلارئې احمد نومېده چه دفیروز کوه کوتوال ؤ، دتاریخ سوري لیکو نکی محمد بن علي ویلی دی « چه ما په بست کښې دشکارندوی دقصیدو یو لوی کتاب لیدلی ؤ » وایی چه دی دشهاب‌الدین سره چه پرهند ئې یرغل کاوه ملگري ؤ، په « پته خزانه » کښې دده یوه بې جوړي قصیده راغلی ده چه د پښتو ادب شاهکار گڼل کېږي .

دا قصیده ئې د شهاب الدین محمد په مدح کښې ویلی ده . ددغی قصیدي یو څو بیته دلته راوړو .

دپسرلي ښکلو نکي بیا کړه سینگارونه — بیا ئې ولول په غرونو کښې لاونه
مځکه شته لا ښو نه شنه امني شني شوي — طلسا ن زمر دی وا غوسته غرو نه
دغټو لو چنډي خـاندي ور یدي تـه — زرغونو بوټو کښې ناځي زامې و نه
لـکه ناوې چه سور ټیـکه په تندي وکـا — هسې وگـانډل غټو او سره پسو لړ نه
هر پلو رڼي والی بهـا ندي خاندي — له خو ښیه سرو هي پـه سـنـگرو نه
هر پـلو دگـلو وزم دی او نـلی — ته وار اغـلـه لـه ختنه کـار وانو نه
په غرو ځنگ غور ځنگ له خولي ز گونه باسي — لـکه شنې هاتی شنها کـاندي سیندو نه
بیاد پسرلي له صفت څخه وروسته وایی :

---

(۱) نول = غم .

نه به چونړی په ستایه د ګلو موږ شي
نه به هسې موږ شم د سلطان په صفتونه
د شنسب د کهاله ختلی لمر دی
د پسرلی په دو دودان له ده رغونه
په زابل چه د بری په نیلي سور شي
پر لاهور ئې دمړانې ګډا رونه
نه به ده غوندې رڼ ستوري په هسک ختلی
که څه پورته شي له غوره ډېر مرونه
پوخاوند شهاب الدین دی چه ئې وکا
په هر لوري هر ایواد ته پرغلونه
په جوپو جوپو جګړن ئې هندته یون کا
چه دغو ربادار همت وکا زغاونه
په هر کال اتك دده ښه راغلی کاندي
غوړوی په خندو خپل پاسته سالونه
پښتونخوا ښکلي زلمي چه زغلي هندته
نواغلای ښغلی کاندي اتڼونه
په رڼا اوسې ته تل د دین شهابه
نوم دې تل وه پردریځ په نمزدګونه
ستا په زېرمه دې خاوند او ی ښتن وی
موږ خوستا په مرسته یونه څوچه یونه



داقصیده څواه (٤٥) بیته ده دپښتو پوخوراقوی اوپوخ شعردی اوډېر زاړه لغات پکښې ویل شوي دي . لکه : لاښ = کمر ، پسول = زیور ، جنډی = ګل ، سنګرونه = کانړی ، شنې = مست ، چونړی = بلبل ، ایواد = وطن ، جګړن = عسکر ، یون = سفر ، سالونه = شګی ، اغلې = ښایسته ، دریځ = منبر ، نمزدك = مسجد .

ملکیار غرشین : غرشین د پښتنو پومشهور ستانه قوم دی ملکیار له دغه قوم څخه پوبزرګ سړی ؤ دپښتنو پخوانو مؤرخینو دولیانو په ډله کښې ذکر کړی دی .

دی دپښتو پوښه ادیب اوشاعرؤ سلیمان ماکو لیکلي دی چه غازي شهاب الدین غوري چه پر کفر پرغل کاوه نوملکیار ورسره ؤ نقل کا چه په یوه جنګ کښې مسلمانان پرشا ولاړل نوملکیار راغی پرغل ئې وکړاوپه جنګ کښې ئې داوروسته یادکی ( اشعار ) وویل نوغازیان وپاریدل ډېر دښمنان ئې ووژل اوفتحه ئې وکړه .

ښتن مومل دی ـ اوس موپرغل دی ـ هیوادبل دی
غازیانو ګوری ـ ښتن مومل دی
توری تیری کړی ـ دښمن موپریکړی ـ منګولی سری کړی
څله به تښتو ـ ښتن مومل دی
که تېنګ کړو زړونه ـ پر بری بونه ـ چه زمری یونه
اسلام راڅخه دی ـ ښتن مومل دی
غازیانو راشی ـ ټول شاوخوا شی ـ دشهاب په ملاشی
دښن موغوڅ کی ـ ښتن مومل دی

دملکیار دادغزاسندره پملی وزن یوښکلې اوله جوښه ډك شعردی چه دیمی اشعارو قوت اوخصوصیت لری اودپښتنو دملی روح اوملي ذوق ښه نماینده ګی کوی .

سلیمان ماکووائی « چه شیخ ملکیار بهتل ترتله دشیخ اسمعیل سترستانه یادکی ویل » دی دسلطان شهاب الدین معاصر اودهغه دملتان په لمری پرغل کښې ( ۵۷۱ ھ ) ژوندی ؤ ملکیار په ډیلی کښې وفات او هوری ښخ دی .

قطب الدين بختيار : ديلار نوم ئي احمد او دخپلي زماني يومشهور عارف ؤ . دي په قوم بختياردي چه دپښتنو يوستانه قوم يادېږي سليمان ماكو وائي : چه دده نيكه (موسى) له بختيارانو څخه هندته تللي ، او په سيند كښي ميشت شوى ؤ ، قطب الدين په هند كښې ډير شهرت در لود دى بيايه ( ٦٣٣ ـ ٦٣٤ هـ ) كښې وفات او په ډيلي كښي ښخ شو چه تر اوسه ئې زيارت مشهوردى .

سليمان ماكو په تذكره كښې دده خوازه اشعار رانقل كړي دي او داسې وائي : بختيار په پښتو سندرې كړينه ، اوښې تو يوينه ، خداى ته زارى كړي ، غلبلې كړي، يادكي لرينه چه يودادي :

ويرمې زده سورى كړ راته وګوره ملوكي
په بيلتون كښي دى وباسم له خوږمنه زړګى كوكى
راته وګوره ملوكى
د بيلتون اورونه بل دي هر ګړى مى زړګى سوځي
ليونى يمه دمينې سوځم زه لكه پيلوځې
راته وګوره ملوكى
غوږ ولي دي اور بل دي اورزما په زړګى بل دي
زه بختيار خاورى ايرى شوم په اور سوى مي كوګل دي
راته وګوره ملوكى

په دې اشعارو كښې هم ديځوانو اشعارو سپيڅلتوب ، ساده ګي اوخوږوالى پروت دى خورا خوږمللي وزن او كسرلرى اوخالصه مينه پكښې ښكاره ده نوپه دې اعتبار ديځوانو شعرونو په لړ كښې داخلېږي .

شيخ متي : دشيخ عباس زوى دى چه په پنځه پښته خرښبون بابا ته رسيږي دى په ( ٦٢٣ هـ ) كښې زيږيدلى او بيايه ( ٦٨٨ هـ ) كښې د( ٦٥ ) كالو په عمر وفات شوى اود ( كلات ) پرغونډۍ ښخ دى . دى په كلات بابامشهوردى يوعارف، زاهد، عالم ، او اديب سړى ؤ . دخداى په مينه كښې ډير اشعار او مناجاتونه ويلي دي . دده كورني يوه ادبي اوعلمي كورنۍ وه ډير شاعران او ليكوال پكښې تيرشوى دي لكه شيخ كته شيخ قاسم ، او نور ـ دده اولاده بياد پښتور بلونۍ تـه ولاړه او هلته ميشته شوله ، ده يو كتاب درلود چه د( خداى مينه ) ـ نوميده داكتاب ئې ترډيره وخته پرمزار پروت و اوخلقو به وايه مګر اوس ورك دى . محمد هوتك په خيل كتاب پټه خزانه كښې دده يو ډيرلوړ الهامي شعر رانقل كړي دى چه يو څوبنده ئې دا دي .

خاونده ښكلي ستا جمال دى ښكاره ئې لور په لور كمال دى
كه ورځ كه شپه كه پيرى كال دى ستاد قدرت كمكى مثال دى
ستاد نورو نو يوه رڼا ده
دلته چه جوړه تماشاده

پر لویو غرو هم په دښتو کښې — په لوی سهار په نیمو شپو کښې
په غاړه زغ او په شپېلکو کښې — یاد وېږ ژلو په شپېلو کښې

تو له ستا دیاد ناری سورې دي
د ستا د مینې نندارې دي

دلته لوی غرو نه زرغونېږي — د ژوندا وژ مې پکښې چلېږي
بو راوی شا و خوا کرېږي — ستر ګې لید و ته ئې هېښېږي

لو یه خاونده تو له ته ئې
تل د نړۍ په ښکلېده ئې

بابا هوتک، د (بارو) زوی دی چه په (۶۶۱ هـ) کښې زېږېدلی او په (۷۴۰ هـ) کښې وفات شوی دی دده یوه جنګی ترانه چه د مغلو په جګړو کښې ئې د رامو د شوق او جوش راوستلو دپاره ویلې وه په پټه خزانه کښې شته .

پهدی ترانه کښې د پښتنو د غیرت او توری ملی روح، د مړانی او ناریتوب جوش، د وطن د ساتنې جذبه ښه څرګنده ده او دا په پښتو ادب کښې لومړی شعر دی چه د مغلو د مخالفت جذبه په کښې لیدله کېږي لکه چه وائی :

پر سور غر بل راته نن اور دی — وګړ په جوړ راته پېغور دی
پر ګلی او کور باندی مغل راغی — هم په غزنی هم په کابل راغی
غښتلیو ننګ کړیء د اموواردی — مغل راغلی په تلوار دی
په پښتو نخوا کښې ئې ناتار دی — پر ګلی او کور باندې مغل راغی
آدمرغی (۱) غښتلیو راشیء — پر ننګ ولاړ و د پښتو نخوا شیء
توری تېرې غشی تر ملا شیء — پر ګلی او کور باندی مغل راغی
زلمیو په غیشو کړی وارونه — د تېرو تورو ګذارونه
وړو ړاندی کړی خپل تېرونه — پر ګلی کور باندی مغل راغی
پښتنو هلی پر غره جنګ دی — سورغر په وینو ددوی رنګ دی
مهال د توری دی د ننګ دی — پر ګلی او کور باندی مغل راغی

شیخ ملکیار: د هوتک بابا مشر زوی او د پښتو یو ښه شاعر دی چه د (۷۴۹ هـ) په شاوخوا کښې ژوندی ؤ تر پلار وروسته ئې د قوم د مشری پګړی په سر کړله، ده د مغلو سره سخت جنګونه کړی دی په پټه خزانه کښې دده یو عشقی سندره راغلی ده چه د (ترنک) رود ته خطاب او د عشق له جوشه ډک یو آزاد ملی شعر دی په دی شعر کښې ځینی زاړه لغات لکه: نیز = سیلاب، نمنځنه = احترام راغلی دی لکه چه وائي:

ترنک بهېږې ترنک بهېږي غاړې ترغاړې
زما زړګی خو خپل لالی غواړي
کړه رو ده، رو ده، د ترنک رو ده
خاوندی وچ کا چه زړګی مومی زما خپله سوده

---

(۱) مرغه دارغسان او د سلیمان د غره تر منځ د پښتنو اصلی علاقه ده ( پټه خزانه )

که نیزدی نیز دی نیز د بېلتون دی

زړه نیز وړلی په ویرژلی په غم زبون دی

که او ردی اوردی په زړه می اوردی

داور به وچ کاندو یرنیوزنه بلډیر په زوردی

نمنځنه یوسه سپینی سپو ږمیه، ورته ووایه چه ترنك تال کړم ستا له خوله لګیه



شیخ ملکیار: (۱) دقبرځای یقینی معلوم نه دی، مګرپه خوګیا نیو کښې دسپین غره نه دراوتلی تنګی په خوله کښې، دملك فقیر دکلی سره نژدې یو قدیمی زیارت دی چه دخواجه ملکیار په نامه مشهوردی نواحتمال لری چه همدا ملکیار به وی.

اکبر: اکبر دزمیندا ور اوسیدونکی، دغو ریانو او غزنویانو په وخت کښې یو مشهور ښارتېر شوی دی داکبر داشعارو له دیوان څخه فقط یوځو پانی دقند هار دهلمند په غاړو پیدا(۲) شوی دی اونور دیوان ئې ورك دی په یوه بیت کښې دمغولی تیمور دظلم وخت داسی ښیئ:

دمغلو تیمورهسی پهاو روسوم     چه بهېر یه دې ماتم زمینداور کړم

له دی بیت څخه معلومیږی چه دی دګوډتیمور په وخت کښې (۷۷۱هـ-۸۰۷هـ-) ژوندی ؤ چه دمغلوظلمونه اوچپاوونه ئې لیدلی دی دا کبرله یوځو شعرنو څخه معلومیږی چه دی د پښتو یوښه اوخوږ ژبی شاعرو، یوشعرئې دادی:

دخپل ځان له حیرانیه څه ویل کړم     دعشق ویربه تل په خپله پټول کړم

مامدام لکه بوراپه ګلو ګشت کړ     اوس به ځم په سرتورسرفراق دګل کړم

دغماز لړمون به زه په لمبه کېږ دم     ځنی هېر به دیار بزم ګل اومل کړم

زمادیاردمینی اورپه زړه کښې بل دی     زه به سراومال ښندم دید به حاصل کړم

دبېلتون له ویره ژاړم اوښکی وینی     زه اکبرپه خپل اشنادسرښندل کړم

سلطان بهلول لودی: داسلطان دملك کالا زوی اودپښتنو یونومولړی واکمن ؤچه (۳۸) کاله ئې پرهند دپاچاهی بیرغ هسك کړیدی او بیا په (۸۹٤هـ) کښې له جهانه تللی دی بهلول دلودی کورنی لومړی پاچادی داسترواکمن په علم اوادب کښې هم دلوی لاس اوپوهی خاوند وده دخلیل نیازی په جواب کښې یوه رباعی ویلی ده چه له پټی خزانی څخه ئې رانقل کوو.

## رباعی (څلوریزه)

ملك به زر غون کړم په ور کړه راسه     ګوره اوریځی ددادله پاسه

خول می دعدل په در و روڼ دی     جهان به زیب مومی زماله لاسه

خلیل خان نیازی: داسړی دسلطان بهلول لودی هم زمانه اوده ددربار شاعرو، داوروسته رباعی دده ده: چه دبرسات په موسم ئې دپادشاه په حضورویلی وه.

---

(۱) دامعلومات ښاغلی خادم په اتحاد مشرقی کښې لیکلی وو.

(۲) داپانی ښاغلی حبیبی پیدا کړی دی.

خړی او ر یځی ژا ړی لــه پاسه — کو یله (۱) زغ کا بیلتون له‌لاسه
په هغه لو نی ګـوهر په خول ستا — دامرحبا کاستازمو نغزموا سه (محافظ)



شیخ‌محمدصالح : دخپل عصریوعالم اوزاهدسړی و، په‌قام‌الکوزی اودقندهارپه (جلدك) کښې ئې په تدریس عمر تېراوه، د (۹۰۰ ه) په حدودو کښې ژوندی و، دده دوه غزلې په‌پټه خزانه کښې راغلې‌دی یوغزل ئې دادی .

چه په زړه ئې غشی څرخ شی دچشما نو — روغ بــه نشی پــه دارو د طبیبا نو
چه‌نورتن له‌رنځه خلاص په‌زړه‌رنځوروی — دادزړه دارو جوړ نـکړه حـکیما نو
مګر الله چه حبیب دی هـم طـبیب دی — کـارسازی کـادخوارانو رنځـورانو
هیڅ ا ثر را با ندې نه کا ندی عا لمه — ښه‌ویـل دروګـو هـرد ناصحانو
نصیحت زړه‌غوا ړی‌زړه‌نشته‌په کو ګل کښې — زړه می‌وړی په‌منګو لو خوبر یا نو
که صالح غوندی د زړه په‌وینو پـا ئې — نـوردولـت په دنیانشته طا لبا نو

زرغون‌خان : په‌قام‌نورزی او دزمینداور « دنوزاد کـلی » ؤپــه ( ۸۹۱ ه ) کـال هرات ته ولاړ، اودهغه وخت په‌ملی جنګـونو کښې ئې ښه‌میړ آنه ښـکاره کړه . دوست‌محمد کا کړوائی چه په (۹۱۲ه) کـال‌چه‌زه هرات تـ تـلم نوپه ( ګجوران ) کښې‌می دملاایوب تیمنی سره د زرغون خان دغزلو اوشعرونو دیوان‌ولید چه‌یا نمی‌ئی په‌شمیر دری سوه وې هم‌دده‌روایت‌دی‌چه‌زرغون‌خان‌په (۹۲۱ه) کـال‌دقندهار په (دیراوت) کښې‌وفات شوی‌دی ده یوه خورا روانه اوخوږه مثنوی ( دوه‌ئیز ) چه ساقی‌نامه نومیږی په‌پټه خزانه کښې شته، ددې ساقی‌نامې څخه معلومیږی چه‌دی پـه‌پښتو ادب کښې استـاذ اودقـوی لاس خاوندؤ، دساقی‌نامې یوځو بیتـه‌ئی دادی :

ساقی‌پاځه پیالـه را کـړه — مرور یا ر مـی پخلا کـړه
اوبه توئې په لمبو کـړه — اورمی‌مړ پدې اوبو کـړه
پسرلـی‌شوغنچه ګـل کا — زلـفـی تـاوی دسنبـل کا
بلبـلان شـور وفغـان کا — کـړیدن په ګـلستا ن کا
په‌راغو کښې سرې لمبې‌دی — دغټـولـو ننـدار ی دی
جهان ټول‌سور اوزرغون‌دی — وچراغه ښـکـلی ګـلـګون‌دی
بـهـاروقـت دبارا نـی‌دی — ښـه‌مـوسـم دپیمانـی دی
نـوساقـی پاځه بـهـار دی — نن ژونـدون سبا رفتار دی
مستا ن ګرزی په بـاغو کښې — مستی کـاندی په راغو کښې
لاس په لاس‌دی یارا نی کا — یو په‌بـل نـا زو نخری کـا
ترتـاو ګـرزمـه راشـه — ساقی یو ګـرې ی پخـلا شه
نوساقـی پـا څه بـهـار دی — بـزم‌تـالـه‌امید وار دی
یاران‌ناست‌ستر ګـی‌ځلوردی — ستادجام پـه امیدنـور دی

---

(۱) کو یلة یوخوش آوازه مارغه دی.

بابړخان: داسړی د دوست محمد کاکړ پلار و، دوست محمد خان کاکړ ایکلی دی:
چه زما پلار «د تذکرهٔ غرغښت» په نامه یو کتاب نظم کړی ؤ، مګر د پلار په مرګ کښې مې زه نه وم، چه راغلم دغه کتاب چا ضایع کړی ؤ، او زه د پلار د مرګ څخه د کتاب په ورکیدو ډیر غمجن شوم. که څه هم د بابړخان اشعار لاس ته ندی رارسیدلی مګر ویلای شو چه د پښتو یو زوړ ادیب او مورخ ؤ.

دوست محمد کاکړ: د بابړخان زوی او یو پښتون شاعر او مؤرخ ؤ. ده (په ۹۲۹ھ) کال په (ژوب) کښې «غرغښت نامه» نومی کتاب په نظم ولیکه دا کتاب ئې د خپل پلار د تذکرهٔ «غرغښت» په دون لیکلی او دهغې خبرې ئې پکښې راوړی دی «غرغښت نامه» یو ادبی معتمد تاریخ ؤ چه د (غرغښت) له حالاتو ماسوا، د نورو شاعرانو او سړیو احوال او اشعار هم پکښې وو. دا کتاب محمد هوتک لیدلی ؤ، او وائی چه په مثنوی ئې د ډیر خوازه بیتونه لرل او یو درسی کتاب ؤ چه کوچنیانو به په سبق لوست».

د غرغښت نامې یو حکایت په پټه خزانه کښې راغلی دی، د هغې یو څو بیتونه ئې دا دی:

له نیکانو روایت دی　　　　هسې تو که حکایت دی.
نور محمد کاکړ راوی دی　　　　چه ئې فیض تل جاری دی
دنیکو نو له خولې وائی　　　　چه منښت ئې راته ښایی
چه کاکړ نیکه زاهد و　　　　لوی ښتن له تل، عابد و
تل تر تله بې عبادت کا　　　　پرودی لیار ئې ریاضت کا

## د دې دورې شاعرانې ښځې

زرغونه: د ملا دین محمد کاکړ لور وه د قندهار په (پنجوائی) کښې اوسیده عالمه او پوهه میرمن وه او خورا ښه خطائې درلود چه ملغلرې ئې شرموې. دې په (۹۰۳ھ) کښې ئې د سعدی بوستان په پښتو نظم ترجمه کړی دی نو ځکه د اعتبار د (۹۰۰ھ) د وختو شاعره ګڼله کیږی وائی چه د دې نور اشعار او غزلونه هم ویلی دی، له دې خزانی څخه ئې دا وروسته قصه چه د مثنوی په ډول د ه د لته راوړه.

اورید لی می قصه ده　　　　چه له شاتو هم خوږه ده
د اختر په ورځ سهار　　　　بایزید چه و رویدار
له حمامه راوتلی　　　　په کوڅه کښې تېریدلی
ایری خاوری چا له بامه　　　　را چپه کړلی نا ګامه
مخ او سر ئې شو ککړ　　　　په ایرو په خاورو خړ
بایزید په شکر کښېنو شو　　　　دخپل مخ په پاکیدو شو
چه زه وړیم د بل اور　　　　چه په اور کښې شوم نسکور
له ایرو به څه بدوړ مه　　　　یا به له نزشکوه کومه
هو پوهانو ځان ایرې کړ　　　　له اوښې ئې ځان پریکړ

ځوک چه ځان ته ګوري تل — خدای ته نشي کړی کتل
لويي تل په ګفتار نه ده — لو خبره په کار نه ده
تواضع به دې سر لوړ کا — تکبر به دې مخ تور کا

رابعه : دا پښتنه شاعره د(۹۰۰ه) په حدود و په قندهار کښې اوسېده، وایي چه دا شعارو دیوان ئې درلود دا رباعي ئې له پټې خزانې ځخه لاس ته راغلې ده:

آدم ئې مځکې وته راستون کا — په اور دغم ئې سوی لړمون کا
دوزخ ئې روغ کا پر مخ د مځکې — نوم ئې دهغه دلته بېلتون کا

## (ددې دورې پښتانه نثر لیکونکي او مؤرخین)

دا ښکاره ده چه پښتو ژبې له ډېر پخوا ځخه پاخه لیکوال او زبردست مؤرخین درلودل مګر نن ورځ د ډېرو لږو کسانو حالات او نمونه مونږ ته معلوم شوي دي او اکثر ئې ورک او بې پتې دي بیا هم ځومره چه معلوم دي وروسته بیانیږي:

سلیمان ماکو: دا سړی د(۶۱۲ه) په شاوخوا کښې د پښتو یو پیاوړی لیکونکی او عالم دی د پلار نوم ئې (بازك خان) و، په قام سابزی او د قندهار په ارغسان کښې اوسېده په شعر ئې علم نه لرو خو په نثر کښې یو ډېر قیمتي کتاب لري چه (تذکرة الاولیا) نومیږي او په دغه پورته سن کښې لیکلی شوی دی، دا کتاب د پښتنو ولیانو او شاعرانو تاریخ دی، سلیمان یو ګرزنده سړی و، لومړی د پښتونخوا په غرو اوروغو ګرځېد د پښتنو ولیانو او بزرګانو حالات ئې را ټول کړل او بیا ئې دغه کتاب ولیکه مګر له بده مرغه چه دا کتاب ټول نه دی پیدا شوی، صرف د سرېو ځو پاڼې ئې پیدا شوي دي چه د ځینې پخوانو شاعر او حالات او اشعار پکښې دي، دا کتاب د پښتو په نثر لیکلی شوی دی، او فعلا د پښتو ژبې لومړی نثر ګڼل کېږي اوس ئې د نثر په نمونه کښې دا یوه ټوټه نشروو لی.

.وایم حمد وسپاس د لوی خاوند، او درود پر محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم چه دی بادار د کونینو او رحمت د ثقلینو لوی لوی رحمتونه دې وی دغه استاځی په آل او یارانو چه د واړه جهانه پر دوی دي روښان اما بعد زه غریب خاوری سلیمان ځوی د بارك خان ماکو سابزی چه په و یاله د ارغسان او سېږم او په دې ځمکو پایېږم په سند وو اس شپږ سوه د هجری تللي وم او د پښتونخوا په راغو او کلو ګرځېدم او مراقد د اولیا او واصلینو مي پلټل او په هر لوري مي کاملان موندل او د دوی په خدمت خاکپای وم او هر کله په سلام ورته ولاړ، چه له دې سفره په کور کښې کېنستم، تنا کی مي وچاودلې د پښتنو بیا پاڅېدو لم او له ښتنه مي مرستون شوم په احوال د هغو کاملانو و کاږم او د دوی چه هغه وینا وي پاتي کړي دي او پښتانه ئې لولي اوس.

په دې نثر کښې که څه هم د عربي جملو او عباراتو اثر لیدل کېږي مګر په پخوانو نثرونو کښې ساده، آسان او مرسل نثر دی بیا هم د موجوده وخت له محاورې ځخه لیرې دي.

محمد بن علي بستي : دا سړی هم د پښتون یو قدیمي مؤرخ دی مګر له بده مرغه چه حالات او کتاب ئې تر اوسه لاس ته نه دی راغلی، له پټې خزانې ځخه دومره معلومیږي چه ده (د تاریخ سوري) په نامه د سوریانو د پاچاهۍ په حالاتو کښې یو کتاب لیکلی و د ژوند وخت ئې

ښه معلوم نه دی مګر دا یقیني ده چه د (شیخ کټه) له زماني څخه (۷۵۰ھ) د مخه تېر شوی دی تاریخ سوري د سوریانو او غوریانو د زماني یو سیاسي او ادبي تاریخ دی د امیر کروړ شعر هم له دغه کتابه رانقل شوی دی د کتاب ژبه ئې په یقین معلومه نه ده مګر غالب ګمان دا دی چه دا کتاب په پښتو و، ځکه چه ډېر پښتو اشعار ځني رانقل شوي دي.

احمد بن سعید اللودی: دا سړی هم د پښتو یو پخواني مؤرخ دی د ملتان د لودي پاچاهانو په حالاتو کښې ئې په (۶۸۶ھ) کال یو کتاب لیکلی دی چه (اعلام اللوزعی فی اخبارا للودی) نومیږي د شیخ رضي لودي او امیر نصر لودي پښتو اشعار له دې کتاب څخه رانقل شوي دي

شیخ کټه: دا سړی د پښتنو یو پوره مؤرخ د شیخ یوسف زوی او د شیخ متي نمسی دی شیخ کټه هم د خپلو پلرو پشان یو عالم او مشهور سړی و د پښتو ادب په لار کښې ده لوی خدمت دا دی چه د پښتنو شاعرانو، پوهانو او مشهورو خلقو په حالاتو کښې ئې د (لرغوني پښتانه) په نامه یو کتاب لیکلی دی.

دا کتاب په پښتو و، او ډېر قیمتي معلومات او اشعار ئې درلودل. د شیخ کټه د ژوندانه وخت د (۷۵۰ھ) په خوا و شا کښې اټکلیږي دی که څه هم په پښور کښې اوسېده مګر یو ګرزند او سیاح سړی و. محمد هوتک وایي چه شیخ کټه په (بالشتان) کښې د محمد بن علي تاریخ سوري لیدلی و او ډېر قیمتي معلومات او اشعار ئې ور څخه رانقل کړي وو لرغوني پښتانه د محمد هوتک لاس ته ورغلي و او ده یو لوی مأخذ دی مګر اوس ئې چیرته درک نشته،

شیخ ملي: دده نوم آدم او د ملي زوی و مګر په شیخ ملي مشهور شوی دی شیخ، ملي د ملک احمد له ملګرو څخه و (۸۰۰ھ) په حدودو کښې د دوی د واړو په مشرۍ د پښتنو ځینې ټبې له کسي غره او ننګرهار څخه پېښور ته کوچېدلي دي.

شیخ ملي د پښتنو مشرا و یو معروف لیکوال او مؤرخ و، ده د پښتنو په حالاتو او د خپل عصر په واقعاتو کښې یو کتاب لیکلی دی چه نوم ئې (د شیخ ملي دفتر) و. راورټي مشهور مستشرق وایي، چه شیخ ملي خپل دفتر په (۸۲۰ھ) کښې لیکلی دی او دا کتاب ماموندلی دی. لنډه دا چه شیخ ملي سربېره په دې چه د پښتنو یو مشر او تاریخي سړی و؛ د پښتنو مورخ او لیکوونکی هم و وائي چه قبر ئې په پېښور کښې دی دی د ملک احمد وزیر هم و.

کجو خان رانی زی: کجو یا کجو خان پس له شیخ ملي نه د پښتنو یو خور را نومیالی مشر او یو بهادر سردار و، او لکه د شیخ ملي یو پوه لیکوال او مؤرخ ګڼل کیږي ده هم د پښتنو په حالاتو په (۹۰۰ھ) کښې یو تاریخ لیکلی دی دا تاریخ در اورټي لاس ته ورغلی و د کاجو کور اوس هم په (سوات) کښې شهرت لري چه پخوا د خاني ځای و.

خان جهان خان لودی: دا سړی د سلطان سکندر لودي په زمانه کښې (۸۹۳ - ۹۲۳ھ) ژوندی او دغه باچا د وزیر حیثیت ئې درلود ده د (مرآة الافاغینه) په نامه یو تاریخي کتاب په فارسي لیکلی دی په دې کتاب کښې د هند د پښتنو پاچاهانو او مخصوصاً د سکندر لودي حالات بیان کړي دي غرض دا چه دا پښتون سردار هم یو عالم لیکوال او مورخ تېر شوی دی نعمت الله دده وفات په (۹۰۱ھ) کښې ښودلی دی.

## ددې دورې پښتانه ادب پالونکي پاچاهان

دپښتو ادب داولی دورې په بیان کښې مونږ ته دامعلومه شوه چه په دې دوره کښې ځینې پښتانه بادشاهان هم تېر شوی دی چه هغوی دپښتو دشعراو ادب سره پوره مینه لرله اودپښتو شاعران اوادیبان به ئې پالل نو دادې وروسته مونږ دغه بادشاهان اوددوی ادب پالنه په لنډه دول بیانوو :

دپخوانو سوریانو کورنۍ : دد تاریخ بیانوونکی وائی چه له ډېر پخوا څخه دغور په غرونو کښې یوی سلسلې ورو پاچاهانو پاچاهي کړېده، داپادشاهان د(سهاك یاسا کا۔ سها کا) له پښته وو، وایي چه سهاك دوه زامن درلودل دیوه نوم (سور) اودبل نوم (سام) و چه د غور سوری پاچاهان هم دغوته منسوب دی داسلام دمخه دغور دسوری پادشادهانو څخه دامیر بسطام اوامیر شماخ سوری نومونه راغلی دی کوم وخت چه داسلام مبارك دین دغور په غرونو کښې قدم کېښود نو دغور محلي حکومت داسلامي خلافت سره ښه منبا سبات قایم کړل د ځینو مؤرخینو په قول دغور لومړی حکمدار چه په دې وخت کښې داسلام دخلافت دربارته ولاړ اوداسلام دین ئې قبول کړ مشهور ملك شنسب دخرنك زوی و ، وائی چه ده دحضرت علی (رض) په وخت کښې (۳۶-۴۰ ﻫ) اسلام راوړی دی چه بیا هغه مبارك غورته یو فرمان ولیږه اودشنسب حکومت ئې ومانه دملك شنسب څخه وروسته دده زوی امیر بولاد سوری په غور اودغور په شاوخوا ځایو حکومت درلود امیر بولاد دمشهور ابومسلم خراسانی چه په (۱۳۷ ﻫ) کښې مړدی همکار اوملګری واودهغه سره ئې ډېری مرستی کړی وی له ده نه وروسته دده زوی امیر کروړ جهان پهلوان په (۱۳۹ ﻫ) دغوریه (منديش) کښې امیر شو، دغور بالشتان، خیسار، اوتمران، کلاکانی ئی ونیولی اوپه زمینداور کښې ئې هم قصر درلود تاریخ سوری لیکلی دی چه دې کورنۍ څوپېړۍ په غور ، بالشتان اوبست کښې حکمرانی کوله پس له امیر کروړ څخه ئې زوی امیر ناصر پرځای کښېناست او غور ، بست زمینداورئې په لاس کښې وو ، له ده څخه وروسته بیا د امیر بنجی غوری ذکر راغلی دی چه دخلیفه هارون الرشید په وخت (۱۷۰-۱۹۰ ﻫ) کښې ئې حکومت کاوه پس له ده څخه دیعقوب صفار په زمانه کښې (۲۵۳-۲۶۵ ﻫ) دامیر بنجی له اولادې څخه دامیر سوری نوم لیدل کېږی . بیادسوری له کورنۍ څخه امیر محمدا میرو ، چه دسلطان محمود غزنوی په وخت (۳۸۷-۴۲۱ ﻫ) پلاس بندی شو او بیا له غیرته په بند کښې مړشو په دې وخت کښې ددې کورنۍ خپلواکی ولاړه اودغزنویانو دحکم اولاس لاندې راغله بیا د بهرامشاه غزنوی په وخت (۵۱۲ ﻫ) سلطان علاوالدین حسین غوری غزنی ونیو، دغزنویانو امپراطوری ورانه اودغوریانو لوی سلطنت شروع شو، له دې کورنۍ څخه یوی څانګې په غور، بلی په بامیان اوبلی په تخارستان کښې سلطنت کاوه چه دایشیا په تاریخ کښې ډېرشهرت لری، نومعلومه شوه چه دپخوانوسوریانو یوه برخه داسلام له اول یعنی دامیر شنسب له وخته (۴۰ ﻫ) دخلورمې هجری پېړی ترنیمائی (۲۵۰ ﻫ) پورې داسلامی خلیفه ګانو اوعباسیانو له خوا په غور کښې دمستقلو امیرانو په حیث پادشاهی کړېده اودوهمه برخه ئې له (۳۵۰ ﻫ تر ۵۰۰ ﻫ) پورې

دغزنویانو دحکم لاندې حکمرانان وو. لکه چه معلومه ده دغورسوریان پښتانه او دپښتو دادب پالونکي وو، امیر کروړ سربیره پر دې چه یو غښتلی پښتون بادشاه و: د پښتو ژبې یو زبردست شاعر او ادیب هم و (دشعر بیان ئې دمخه راغلی دی) د دوی په وخت کښې پښتانه شاعران لکه ابو محمد هاشم او شیخ اسعد سوري پیدا شوي او روزل شوي دي. ددغه وخت دپښتو پالنې اثرو؛ چه ابو محمد هاشم دهلمند په غاړه او (بست) کښې دپښتو شعر وئه ویل او خپل کتاب (دسالووږمه) ئې په پښتو لیکلی دی. شیخ اسعد خود امیر محمد سوري د دربار شاعر او دهغه نژدې ملګری او دوست و؛ چه بیا ئې دهغه په مرګ ژړلی او ساندې ویلې دي. نو ویلی شو چه پخوانو سوریانو خپلې ژبې پښتو ته توجه کوله او ددوی په وخت کښې پښتو ښه شعر او ادب درلود.

د ملتان دلودیانو کورنۍ: په ملتان کښې دلودیانو پښتو بوې وړې کورنۍ له (۳۵۱ه) څخه تر (۳۹۰ه) پورې پاچاهي کړې ده. داسې معلومیږي چه دوی داسلام په او لو فتحو کښې هند ته تللي دي، ددې کورنۍ اول امیر سلطان حمید لودي و، وایي (۱) چه ده خپل وراره شیخ رضی پښتنخواته داسلامي دین دتبلیغ دپاره رالیږلی و، دسلطان حمید نه وروسته دده زوی امیر نصر امیر شو، بیا ورپسې دنصر زوی ابوالفتوح داؤد دپلار پر ځای کښیناست مګر دده په وخت کښې سلطان محمود په ملتان حمله وروړه ددوی امیری ئې کمه وه او ده کړه او دې ئې غزنۍ ته بندي راووست دا کورنۍ هم دپښتو ادب په پالنه او روزنه کښې ښه برخه لري، دوی سربیره په دې چه پښتانه بادشاهان وو په پښتو کښې به ئې خوازه اشعار ویل او یو له بله به ئې په شعر سوال او ځواب کاوه (لکه چه د شیخ رضی او امیر نصر لودي د اشعارو بیان دمخه راغلی دی).

غزنویان: دغزنویانو دبادشاهۍ مؤسس الپتګین دی، دامیر نوح سامانی نوکر او دهغه په وخت کښې دخراسان نائب الحکومه و، چه بیا په غزنی کښې مستقل پاچا شو دده نه وروسته دده نوکر سبکتګین، او بیا دسبکتګین زوی سلطان محمود پاچا شو له (۳۵٦ه څخه تر ۵۱۲ه پورې) ددوی دپادشاهۍ دوره ده سلطان محمود دافغانستان یو ستر او کمن او لوی پادشاه دی مورئې دقندهار له پښتنو څخه وه، په دې اعتبار ډیر پښتانه دده په لښکرو کښې شامل وو، چه ده هندوستان جواهر سره او سپین به ئې ورله راوړل او ده به دفارسي په شاعرانو ښندل او بادول- وایی (۲) چه دده په وخت کښې دپښتو با قاعده لیکل رواج شوي دي، په دغه زمانه کښې قاضی سیف الله دپښتو دتحریر او لیك په اصلاح کښې کوشش کړی وو او دپښتو مخصوصو آوازونو ته ئې مخصوص توري ټاکلي وو پر ته له دې څخه دغزنویانو په دوره کښې دپښتو په باب نور څه معلومات نه لرو، مګر دا معلومه ده چه دپښتنو مشهور نیکونه او نومیالي شاعران بیټ بابا، اسمعیل، خرښبون په دغه زمانه کښې تیر شوي دي.

---

(۱) پټه خزانه

(۲) دقاضي خیر الله پشاوري دخیر اللغات دیباچه، مګر دا روایت کوم پوخ سند نه لري.

غوریان : لــه چه دمخه وویل شود غزنو یانو دلوبی امپر اطوری د کمزوری نه وروسته په غور کښې دپښتنو غوریانو دلویې پاچاهۍ بیرغ جګ شو، دپخوانو غوریانو په اولاده کښې لهسلطان علاؤالدین حسین څخه داسلسله و نښته او دور ستنی مقتدر پاد شاه شهاب الدین محمد پوری راورسیده دادوره تقریباً له (۵۰۰ ه څخه تر ۶۰۰ ه پوری) وچلیده علاؤالدین جهانسوز، غیاث الدین او شهاب الدین ئې مشهور او زبردست پاچاهان وو، شهاب الدین دافغانستان لهلویو فاتحانو څخه دی چه په (۶۰۲ ه) کښې وفات او پس له ده نه په هند کښې دده نوکر قطب الدین ایبک باچا شو.



سلطان شهاب الدین غوری

دغوریانو په وخت کښې پښتو ته ښه توجه شوې ده لـکه چه په غزنوی دربار کښې به فارسی شاعران روزل کېدل؛ دغسې به دلته د پښتنو شاعراو پالنه کېده پښتو شعرونه او قصیدې به وویل کېدې په غزاګانو او جنګو نو کښې به د دوی سره پښتانه شاعران ملګری وو او پښتو ترانې او سندری به ئې ویلی په دې دوره کښې دپښتو ښه ښه شاعران لکه ښکارندوی، ملکیار غورشین تایمنی، او نور تیر شوی دی (چه بیان ئې دمخه راغلی دی) تایمنی دغیاث الدین د دربار مشهور شاعر دی چه دپادشاه په مدح کښې ځینې اشعار لری دارنګ ښکارندوی دشهاب الدین په دربار کښې پالل شوی دی دهغه ادبی مشاور او پادشاه ته دیر ورنږدې وو، ښکارندوی دشهاب الدین په مدح کښې ښې قصیدې ویلی دی په دې دول ملکیار هم دده ددربار شاعر او په جنګو کښې به ورسره و، چه دغزا یوه مشهوره سندره ئې په دغه وخت کښې ویلی ده په دې عصر کښې دپښتو یو بل شاعر چه شیخ تیمنی نومیده هم موجود او دعلاؤالدین په زمانه کښې ئې ژوند کاوه داسې معلومیږی چه دمحمد بن علی بستی (تاریخ سوری) هم دغوریانو په وخت کښې ددوی په توجه او مرسته لیکلی شوی دی.

دخلجیانو کورنۍ : (۶۸۷-۷۲۱ ه) په هندوستان کښې دشهاب الدین غوری له مرګ څخه وروسته دده نوکر قطب الدین ایبک پاچاشو له ده نه وروسته دده مریې شمس الدین التمش په تخت کېناست، دده کورنۍ تر څه وخته پادشاهی وکړه نو بیا د غیاث الدین بلبن کورنۍ شروع شوه چه ددغه شمس الدین نوکر و، هغه وخت چه دبلبن داولادی وروستنی سړی «کیقبات» مړ شو، نو دپنجاب حاکم فیروزخان په دیلی قبضه وکړه، دجلال الدین خلجی لقب ئې غوره کړ او دخلجیانو دپاچاهۍ تاداوبې کېښود دا کورنۍ دغورخلج نومې ځای ته منسوبه ده چه له ۶۸۷ ه څخه ئې تر ۷۲۱ ه پوری په هند کښې پاچاهی کړې ده.

وائې چه دفیروز خان په وخت کښې هم پښتو او پښتنو ته توجه کېدله؛ دچاچه به پښتو

زده وه هغه به دده په دربار کښې قدرمن او ورانده ي و، د پښتو قدر او عزت به ئې کاوه او دوی ته به ئې په درنه ستر ګه کتل نور دده له دربار څخه معلومات نه لرو.

دهند لودیان: کوم وخت چه مغولی امیر تیمود په (۸۰۱ﻫ) کال په هند حمله وکړه او ډیلی ئې ونیو نو درا ګرزېدو په وخت کښې ئې سید خضر خان له خپلې خوا د هند نایب السلطنه مقرر کړ دا سړی بیا څو مده ورسته پاچا شو.

خوشحال خان دخضر خان کورنۍ ستایي، او وایي چه ددې کورنۍ د محمد شاه په زمانه کښې پښتانه په عزت وو لکه چه وایي:

بیا له پسه چه تیمور په هند را کښېوت — خضر خان ته ئې ور کړې حکومت و
بیا سلطان مبارک شاه د خضر خان و — چه ښکاره ئې له جبینه سیاست و
بیا سلطان محمد شاه دده ورارهٔ و — چه پښتون دده په عهد په عزت و

بیا هر کله چه ددې کورنۍ کمزوري شوه نو پس له دوی څخه په (۸۵٦ﻫ) کال د ډیلی تاج او تخت د پنجاب د حاکم بهلول لودي په لاس ورغی ده په ډېلی کښې په خپل نامه خطبه او سکه ووهله، ډېر ځایونه ئې ونیول او د هندوانو د راجګانو سره ئې سخت جنګونه وکړل بهلول لودي د هندیو نو ډیالی پادشاه او دلوی عزم څښتن و، ۳۸ کاله ئې په هند کښې د انتظام او عدل سره زبردسته پادشاهي وکړه له ده نه وروسته دده زوی سکندر لودي په (۸۹٤ﻫ) کښې پاچا شو او بیا په (۹۲۳) کښې ابراهیم لودي ته وارورغی چه آخر دې سړی د بابر مغولي له لاسه شکست وخوړ پس له هغه د لودیانو پادشاهي خرابه او د مغلو پادشاهي شروع شوه، د هند لودیانو کورنۍ هم په پښتو مینه او د پښتو د ادب پالونکې وه په خپله سلطان بهلول لودي د پښتو شاعر او یو علم دوست او ادب پالونکی پاچا و لکه چه خلیل خان نیازي دده د دربار یو پښتون شاعر و.

(ددوارو د شاعرۍ ذکر وړاندې راغلی دی) دغسې د سلطان سکندر لودي په دربار کښې هم پښتانه لیکونکي، پالل کېدل لکه چه خان جهان لودي دده د دربار یو زبردست لیکونکی ؤ او دده په توجه ئې د پښتنو او د لودیانو یو تاریخ لیکلی دی په دې اعتبار ویلی شو چه ددې کورنۍ پاچاهانو هم د پښتو ادب سره مینه لرله او د شعرا او ادب مینان وو مګر شاید چه جنګونو او جګړو او د وطن انتظامو د پښتو زیات خدمت ته نه وي پرېایښي، او ډېر خدمت وخت ئې نه وي موندلی.

## د پښتو د ملي ادب ځینې برخې

### (۱) د پښتو افسانې، نکلونه او نارې

پښتانه ځینې قصې لري چه په هر ځای کښې ډېرې مشهورې دي دا قصې د پښتو په ادبیاتو کښې خورا اهمیت لري او د پښتو د ادب یوه مهمه برخه ګڼل کېږي. په دې قصو او نکلونو کښې د پښتنو روحیات، افکار، رسم رواج او ملي دودونه په ښه شان ایدلی شو. دا افسانې د جوړېدو په لحاظ دوه برخې لري، یوه برخه ئې نثر دی چه د نکل واقعات پکښې بیانیږي او بله برخه ئې نظم یعنې نارې دي. د پښتو افسانې په قصصي او تاریخي نثر کښې داخلیږي او د محاورې او ساده خبرو اترو رنګ په کښې زیات دی. د پښتو افسانې له ډېرو پخوانو وختو څخه مونږ ته راپاته او نقل په نقل رارسیدلې دي، دا نکلونه او افسانې عموماً په دوه ډوله دي:

۱: خيالي افسانې-۲- فطري افسانې - په فطري افسانو کښې واقعات په عقل او فطرت برابر وي لکه دفتح خان او یاد آدم خان قصه. او خيالي افسانې هغه دي چه واقعات يې په فطرت برابر نه وي محض خيالي او فوق العاده شيان وي، لکه د پيريانو او ديوانو قصې خارق العاده قصو ته اروپايان «کونت» وايي او واقعي او حقيقي قصې د تاريخ يو جزء بولي، د پښتو افسانې د موضوع او مطالبو په لحاظ اکثري عشقي او جنګي دي په عشقي نکلو نو کښې د دوو مينو دحالاتو او سرګذشتو تاثيرناك اوخوندور بيانونه وي، او په جنګي نکلو نو کښې زمونږ د جنګيا ليو نيکه ګانو د توري او مړانې حالات ښودل شوي وي- دي نکلو نو ته مونږ د پښتنو يو ادبي او تاريخي ميراث ويلي شو په دې نکلو نو کښې د پښتنو پاك او ساده احساسات په داسې اندازه نغښتل شوي وي چه هره برخه يې د زړه پردې خوځوي او زړونه ويلي کوي، خصوصاً کمې ناري چه په دغو نکلو نو کښې ويل کيږي خالصې د ټوپك ګولۍ دي او دومره تاثيرلري، چه هله و نه رېږدوي، له دې نارو او نکلو څخه ډېر سوز، خالصه مينه عاشقانه احساسات، مړانه، توريالي توب، ساده والي او نورې ښېګڼې، ښکاره کيږي او په دې لحاظ د پښتو دملي ادب يوه غوره برخه يې بولو، له دې افسانو څخه د پښتنو عادات، احساسات، دژوندانه حالات، او داسې نور شيان هم ښکاره کيږي.

(۱) عشقي افسانې لکه دقلندر او ميرجان افسانه، دقطب خان او نازو افسانه، دښادي او بيبو، د آدم خان او درخانۍ، دمؤمن خان او شيرينو افسانې.

جنګي افسانې لکه دفتح خان بړيڅ افسانه، دموسى جان او ولي جان افسانه او داسې نورې.

ددې افسانو او نکلو نو دويلو تاريخ په صحيح ډول نه معلوميږي، البته دځينو افسانو دخلکو له نوموڅخه ئې څه نه څه دويلو زمانه معلوميداې شي لکه د آدم خان او درخانۍ افسانه هر کله چه آدم خان د (۱۰۰۰ ھ) په شاوخوا کښې ژوند کاوه. نو دا افسانې زمانه يې هم له دغه وخت څخه را وروسته ده، د پښتو دافسانو ويونکي هم معلوم نه دي. بلکه نقل په نقل له پخوانو وختو څخه راغلي دي او دهرې زمانې او يانو په کښې درنګينۍ اوخوند دپاره ځينې کلمات، غملې او ځينې برخې زياتې کړې دي- د پښتو دموجوده افسانو له نوموڅخه معلوميږي چه دا ټولې له اسلام څخه را وروسته جوړې شوې دي.

که څه هم کيداى شي چه اصل افسانې له قديمه موجودې وي، او د اسلام په وخت کښې ئې نومونه بدل شوي وي.

دفتح خان نکل: يو له دغو افسانو څخه چه ډېره مشهوره ده، دفتح خان بړيڅ افسانه ده فتح خان بړيڅ داسلم خان زوى و، چه د قندهار په کلابست کښې اوسيده، اسلم خان د کلابست پاچاو، نقل کاچه فتح خان د «۶۰» بړيڅو سره هندته لاړ او هلته يې جنګونه او جګړې وکړې، دا واقعات يې په نکل کښې بيان شوي دي او دده ننګيالي توب او مړانه په کښې ښودلې شوي ده دفتح خان دژوندانه زمانه د «۹۰۰ ھ» خواوشا ګڼل کيږي- وائي کم وخت چه فتح خان دهند دتلو نيت وکړ نو مورې خبره شوه او کلابست په دروازه کښې ورته کښيناسته مګر دې ترې په بله دروازه ووت، نو مورې دا ناره پسې وکړه:

---

(۱) دا افسانې اکثرې ښاغلي نوري ټولې کړې دي او يو ټوك يې دملي افسانو په نوم نشر شوي دي.

که‌دوې دی‌دوې‌دی د کلابست دروازې دوې دی
پریوه‌یې فتح‌خان وزی‌پردا بله‌یې دمورسوری ناری دی

دفتح‌خان په قصه کښې درا بیاچه دفتح‌خان معشوقه وه، او د کرمی چه‌ددهوروړ ، ناري هم شته. اودغه دواړه‌ددې قصې پهلوانان دی.

کم وخت‌چه‌په آخری ځل فتح‌خان جنګ ته‌ووت، نورابیا داسې ناره‌و کړه:

د فتح کر نګه نال نال به دې زرین کړم -
که‌دې داوار فتح را اوو ړزما امیل به‌دې دغاړې لونګین کړم.

د آدم خان قصه : آدم‌خان په‌قام یوسف زی اودسوات په «بازدره کښې اوسیده، دی‌دطاؤس خان په‌لورچه «درخو» نومیده، مین‌و ددوی‌دواړ ودمینې قصه‌اوزده ده-اوډیرې خـو زې خبری لری‌چه‌په هرځای کښې مشهورې‌دی، دآدم‌خان په نقل کښې هم‌ډیرې سوزنا کې او خوږې‌ناري راغلې‌دی، آدم‌خان در خو ته‌دمینې په‌اظهار کښې وایی:

درخانی مـېرمن‌ملو کې!چه په‌درست‌جهان دی‌ولاړې دحسن کو کې
آدم‌ستا کتور نځور کړ که‌ور کوزې کړی‌ددواړو زلفو څو کې

یوه‌شپه‌چه‌درخو د آدم‌خان په‌انتظار وه، اودی‌رانه غی‌نودې‌داسې ناره‌و کړه:

په‌دا نیم پالنګ یم ناسته، دغه‌نیم پالنګ مې‌تاو ته‌پرې ایښی -
هم‌چه‌ته‌زلی رانه‌غلې آدم‌خانه ،داور بل‌و ښته مې‌ژاړی ګوښی ګـو ښی -

وړې قصې: په پښتو کښی ځینې وړې قصې‌هم شته داقصې اکثرې لکه‌دمتلو نو دخلکو یا دې وی، اوداسې له یو بل نه‌نقل په‌نقل راپاته کیږی -داقصې‌ځینی اخلاقی اواجتماعی غایه‌هم لری، اوپه‌ځینو ځایو کښی دمثال په‌ډول ویل کیږی، په‌پښتو کښې دمتشی احمد «ګنج پښتو» ددغسې قصو تحریری مثال‌دی‌وړې قصې هم‌لکه دافسانو ځینی‌واقعی اوځینی خیالی وی.

داروپاروما نونه: (۱) په‌اروپا کښې له(۱۹) قرن‌څخه راپدې خوا روما ن نویسی تغیر موندلی‌دی- یعنې موضوع ئې له‌خیالی شیانو څخه حقیقی شیانو ته‌او ښتې‌ده- پس له‌دغه وخته رومان لیکو نکو خپل رومانو نه‌دعلم اومشاهدې په‌اساس لیکل شروع کړی‌دی - نو باید چه‌زمونږ په‌موجوده رومانو کښې هم‌دحقیقت رنګ زیات‌وی، اوبل پکاردی چه دملی کرکټر موجودیت هم په کښې له‌نظرلاندې ونیولی‌شی: وړی‌قصې یاناول‌هم‌ښایی چه دغه دروما ن شرطونه‌ولری، په‌وړو قصواورومان کښې‌فرق‌صرف دومره‌دی چه‌په‌وړو قصو کښې سړی‌زرمطلب ته رسیږی-

ناره:- په‌پورته نکلو کښې‌مو ناره‌ولوستله، ناره‌دپښتو یوملی‌او آزاد شعردی، مسرې ئې کله برابرې او کله یوه‌لنډه اوبله‌اوږده‌وی، دقافیې التزام هم‌په کښې نشته، کله دواړه مسرې په‌یوه قافیه، او کله‌هریوه ځانله‌ځانله قافیه‌لری. ناره دلنډۍ په‌شکل هم راځی، لکه دمومن خان په‌قصه کښې‌داوروسته ناره، کوم‌وخت‌چه دی‌په سفر روا نیده نوشیرینو پرې داسې ناره و کړه:

تادسفر موزې په‌پښو کړې ‌ ‌ ‌ دڅېړو ګلو باغ په چا سپارې مینه

(۱) از آدب جدید کریمی

## (۲) د پښتو لنډۍ

زمونږ د ملي ادب يوه لويه برخه لنډۍ دي: لنډۍ يو خاص ملي شعر دی چه په بله ژبه کښې به يې غالباً مثال نه وي. د لنډيو لومړۍ مسره لنډه او (۹) سيلابه، او دوهمه ئې اوږده او ديارلس سيلابه وي. په ځينو ځايو کښې ورته «ټپه، مسره، ټکی» هم وائي.

د پښتو هره لنډۍ د غرض ټکی دی او په هره يوه کښې بيل بيل مطلب پروت وي، د پښتو لنډۍ د شمير په لحاظ له زر ګونو نه هم زياتې او زښتې ډيرې دي مګر ټولې (۲) تر اوسه پورې چا نه دي ټولې کړې ـ د پښتو لنډيو کم خاص ويونکی هم معلوم نه دی، ټول پښتانه يې وايي او په تيرښځې په کښې ډيره برخه لري.

لنډۍ د پښتو يو طبيعي او فطري شعر دی او ډيرې سوزناکې او خوندناکې وي لنډۍ يو خاص وزن او طرز لري که څه هم په اندازه کښې ټولې لنډۍ يو شان دي، مګر په هر ځای کښې په جلا جلا وزنو او آهنګو ويل کيږي چه په ټولو کښې تيراوالې مشهورې دي ـ د پښتو د لنډيو يقيني تاريخ معلوم نه دی. مګر هر کله چه لنډۍ د پښتو يو فطري او ساده شعر دی، نو ګمان کيږي چه ډيرې قديمې او پخوانۍ به وي.

په ښکاره ډول چه د کمې لنډۍ وخت معلوم دی، هغه دا ورسته لنډۍ ده، چه زر کاله پخوا د سلطان محمود په وخت کښې ويلې شوې ده ـ د سلطان محمود په لښکر کښې يو پښتون سردار ؤ چه ملك خالو نوميده کم وخت چه له هندنه دده لښکرې واپس راګرځيدې نو په دغه وخت کښې يوه پښتنه ميرمن خوشحاليږي او داسې وايي:

چه د خالو لښکرې راغلې — زه به ګومل ته د خپل يار ديدن له ځمه

مطلب دا چه لنډۍ د پښتو ادب د ملي نظم يوه غوره او لويه حصه ده، چه د پښتو د اصلي افکارو نماينده ګي کوي، او خوراقوي او مؤثر اشعار بلل کيږي. د پښتو لنډۍ اکثرې عشقي دي، رزمي او حماسي هم په کښې ډيرې دي، او په نورو خواو کښې هم ويلې شوي دي، اوس يې يو څو مثاله دلته راوړو:

جانان مې ګل له لاسه نه اخلي — داسمان ستوري به جرګه ور له ليږمه
ستر ګې کچکول کړه ديدن وا خله — ملنګه يار په بها نه راغلې يمه
پاس په بلې کوترې راغلې. — زه په پوړو ديار پښتنه ترې ګومه
اشنا مې سر په وطن کښېږود — په تار د زلفو به کفن ورله ګنډمه
تر توريالي مين به جار شم — چه دغليم په وينو سره کاندي لاسونه

دلنډيو سره کله کله ځيني کسرونه او سرونه هم راځي، دا سرونه چه د لنډيو په مينځ کښې ويل کيږي ډير خونداو کيف لري. دې قسم ملي شعر ته نيمکۍ وايي ـ مثلاً يو سردا دی:

واوا ټولوه د باغ ګلونه غاټوله يا ره — تن مې د شنې نکريځې پانه غا ټوله يا ره
ظاهره شنه دننه رنګ په وينو يمه — واوا ټولوه د باغ ګلونه غاټوله يا ره

---

(۲) په ۱۳۲۳ ش کښې د پښتو ټولنې له خوا د ملي سندرو په نوم د درې زره لنډيو يو کتاب نشر شوی دی.

## (۳) د پښتو متلونه

د پښتو متلونه هم د پښتو ادب يوه غوره برخه ګڼل کيږي، دا متلونه له ډېر پخوا څخه موجود او زمونږ د سپيڅلو نيکونو غوره، قيمتي او تللي وينا وې دي، چه د نقلونو په شان له يونه بل ته، له بل نه بل ته، نقل په نقل راغلي او را پاته شوې دي. د لنډيو په شان د متلونو د ويلو تاريخ هم معلوم نه دی، مګر په هر زمانه کښې ويل کيږي، او کم خاص ويونکی هم نه لري بلکه د ټولو پښتنو د خولې مرغلرې دي، چه خورې ورې د خلکو په ذهنونو کښې پرتې دي. د متلونو عبارات خوندور، لنډ مختصر او ډېر مطالب په کښې ځای شوي وي، د پښتو متلونه که څه هم په نثر کښې داخليږي، مګر اکثر يې سجع او قافيه هم لري.

متلونه د يو ملت د عاداتو او خويونو د ښکاره کېدو آينه ده، او د هر قوم د پوهې، تجربو او طبيعت د صفايۍ اندازه ترې معلوميږي. متلونه هغه پخې پخې خبرې دي؛ چه له ډېرو تجربو نه وروسته په لاس راځي، او د ژوندانه لارښوونکي ګڼل کيږي. متلونه په کلام کښې خوږوالی او قوت پيدا کوي، عبارت پرې خوندور او خوږيږي. دا وجه ده چه شاعران او ليکونکي يې په خپلو وينا وو کښې راوړي، او له دې کبله د بديع په فن کښې د ايو صنعت بلل شوی دی. د متلونو پېژندنه دوه خواوې لري: يوه دا چه اصل مورد يې سړي ته معلوم شي، چه دا يې حقيقي معنا ده، او بل دا چه د استعمال ځای يې وپېژندل شي، چه دا يې کنايي معنا ده، مثلاً د دې متل «ځوک چه خوب کوي د هغوی نر کټی زيږي» - اصل مورد دا دی: وايي چه دوه تنه ملګري په مېښو پسې تللي وو، بلاربې مېښې يې واخستې او بېرته خپل وطن ته راروان شول، يو ځای کښې پرې شپه راغله د شپې د دوا ړو مېښې لنګې شوې، يوې کټی او بلې کټۍ راوړه. د کټي خاوند د شپې راويښ شو، د خپلې مېښې کټۍ يې د ملګري مېښې ته ودراوه او د هغه کټی يې خپلې مېښې ته ودروله، ملګري يې چه سهر له خوبه پاڅېد پوښتنه يې وکړه چه دا څنګه چل دی؟ زما مېښې کټی او ستا مېښې کټۍ راوړی ده؟ ده ورته وويل: «ځوک چه خوب نه کوي د هغو نر کټي زيږي» دا متل اوس په هر ځای کښې چه د غفلت له وجهې نه چا ته ضرر ورسيږي، استعماليږي. يا دا چه « مات لاس غاړې ته لويږي» حقيقي معنا يې هم موجوده ده ځکه چه د مات لاس خوږ شي نو حقيقتاً يې غاړې ته اچوي او مجازاً په داسې ځای کښې استعماليږي: چه يو عاجز او بې وزلی سړی د خپل ځان غم په کم مالدارۍ او مشرانو غواړي نو دغه متل وايي.

متل ته په عربۍ کښې مثل هم په دې اعتبار وايي، چه د دوهم شي حال د اول سره مشابه کيږي يعنې د استعمال ځای يې په اصل مورد قياسيږي.

د پښتو متلونه هم ډېر او په زياته اندازه دي، مګر تر اوسه ټول نه دي جمع شوي (۱) او دغسې خواره واره د خلکو په سينو کښې پراته دي، د پښتو يو څو متلونه دا دي:

روغ صورت پاکه پادشاهي ده - يتيم په ژړا عادت دی - سل دې ومره يو دې مه مره چه بادنه وي، ونه نه خوځيږي - وسله هغه ده چه په لاس راغله - که غرلوی دی په سر يې لاره ده چه بد ګرځي بد به پرځي، د بهر ګټندوی نه، د کور ساتندوی ښه دی - دلته غواړی

---

(۱) د پښتو ټولنې له خوا د پښتو متلونو يو وړوکی کتاب په ۱۳۱۸ ش کال کښې نشر شوی دی.

آخر خاوند قصاب دی له پروت زمری نه ، ګرځنده ګیدړښه دی- ازمیلی بیا مه از میه
پسته غاړه توره هم نه غوځوی ځوك چه پیلان ساتی، دروازې دنګې جوړوی- اول وخوره
دځان غوښې ، بیا وخوره دښـمار غوښې .

## ددې دورې نظم ته یوه عمومی کتنه

شعر او نظم دهرې ژبې فطرې ناموس دی، هرځوك ئې لری اوهرځوك يې ويا ړ ی
پښتو هم له ښه مرغه له ډير پخوا څخه دقوي اوپاخه نظم خاوندده، لکه چه دمخه وويل
شو دپښتو لومړی شعر په (۱۳۹هـ ق) کښې امير کرو ړ ويلی دی، دهغه وخت دشعرمتانت او
قوت ته چه ګورو نو په یقین دپښتو دشعر تاريخ ځو پيړۍ نورهم لـه دغه وخت څخه
وړاندې تللی شي دپښتو پخوانی نظمونه دمضمون اولفظ دواړو له حيثه پاخه دی ، حتی
چه موجوده وخت يې هم مثال نشي پيدا کولی، په پښتو کښې له پخوا څخه ويا ړ نې ، جنګي
اشعار، ستاينې اومرثيې ليدل کيږي، ځکه چه دا ټول دانسان طبيعي جذبات دی چه په
هروخت کښې دانسان سره لازم دی، په دې ډول ځينې وصفي اشعار اوځينې اجتما عـی
احساسات هم په پخوانو اشعارو کښې وينو، تقريباله (۶۰۰هـ) څخه را په دې خوا دپښتو
په نظم کښې تصوفي افـکار راننوتي دی او وررووروئي وسـ[illegible] موندلی دی، له دغه وخت
څخه را وروسته دمغلو سيلاب راغلی دی او دې حادثې په پښتو ادب لږو ډير اثر اچولی
دی ، مګر دا اثر ددوهمې دورې په ادب کښې زيات ليدل کيږي، په عمومی ډ ول له
(۱۰۰هـ) څخه تر (۹۰۰هـ) پورې چه دپښتو دادب دتاريخ لمړۍ دوره ده، د پښتو په شعر
کښې کم مهم تغير نه دی راغلی دپښتو په پخوانو اشعارو کښې دا وروسته خصو صيات
ليدل کيږي :

۱- پخوانی نظمونه دافکارو په لحاظ ساده دی، پيچيده تخيلات نه لری . دمحيط او
زمانی تاثير په کښې ځر ګند دی

۲- پښتو ئې سوچه او دزړو پښتو لغاتو استعمال په کښې ډير دی، چه اوس ا کـثر
متروك دی اونه ويل کيږي.

۳- ملي وزنونه اوملی بحرونه په کښې ډير استعمال شوی دی، دعربو اوزان يې زيات
نه دی قبول کړی، که څه هم دغزنويانو په زمانه کښې دفارسی دقصيدو درواج په اثر ،
په پښتو کښې هم قصيدې رواج شوې دی، مګرسره ددې ئې هم خپل متانت اوسو چه والی
له لاسه نه دی ورکړی، په دې دوره کښې د(سالو وزمه، دخدای مينه، دپښتو بو ستان ،
غرغښت نامه) دنظم مشهور کتابونه دی .

ددې دورې په ملي اشعارو کښې لنډی هم يوه مهمه برخه ده، که څه هم لنډۍ په يوی
دورې پورې اختصاص نه لري، او دهرې دورې ادب په دې خوږ وسند ر وښايسته دی .

## ددې دورې نثر ته يو نظر

دا ښکاره ده، چه پښتو به له ډيرې پخوا څخه محاورو نثر درلود، ځکه چه داقسم
نثرد ژبې داول پيدا ښت سره لازم دی، ډير پوهان وايی: چه «نثر په هره ژبه کښې له نظم له
څخه دمخه دی ځکه چه نثر ضروری اونظم کمالی شی دی» نو ويلی شو چه دپښتو نثر دپښتو

دنظم د تاریخ څخه ډیر پخوا موجود ؤ او مونږ په دې یقین لرو: چه زمونږ نیکونو په سوونو کالو پخوا په همدې پښتو یو له بله دوروولي خبرې اترې، او د دوی مشرانو به دوی ته دژوندانه دلارښوونې دپاره وینا ګانې کولې، مګر دغه محاورې او خطابې نثرونه د کاغذ په پاڼو نه دي پاته شوي، بلکه په هوا کښې تللي او محو شوي دي، هو! د پښتو لمړی تحریری نثر چه لاس ته راغلی دی، هماغه د سلیمان ماکو د «تذکرة الاولیاء» نثر دی، چه نمونه یې دمخه راغله په دې دوره کښې نور نثرونه نه دي لیدلي شوي که څه هم دنثر د یو څو کتابو نومونه لکه لرغوني پښتانه، تاریخ سوري، دشیخ ملي دفتر، دخان کجو تاریخ راته معلوم دي. مګر هغه هم په لاس نشته په دې لحاظ په لومړۍ دوره کښې د نثر خوا کمزوري او دا برخه لږه ده د دې دورې نثر نماینده یوازې د سلیمان ماکو نثر ګڼل کیږي د ده نثر لکه د هغه وخت د نظم ساده او مرسل نثر دی د موضوع په لحاظ د دې دورې نثر ډیر محدود دی او صرف مذهبی او تاریخي جنبه لري د دې دورې بل مهم خصوصیت دا دی چه د پښتو د کتابو نومونه یې هم اکثره پښتو دي، چه دا خصوصیت بیا په وروسته دوره کښې نه لیدل کیږي. د دې دورې په نثر کښې ځینې ملي افسانې هم شاملیدای شي، مګر دومره خبره ده چه دغه افسانې په خپل پخوانی حالت نه دي پاته شوي بلکه په هره دوره کښې یې لږ و ډیر تغیر موندلی او مونږ ته رارسیدلي دي.

## دوهمه دوره له (۹۰۰ق ۱۴۹۴ع تر ۱۱۰۰ق ۱۶۸۷ع پورې

### د بابر باچا او دهغه د اولادې زمانه

هر کله چه د پښتو دادب د تاریخ اوله دوره مو وپېژندله؛ نو اوس غواړو چه د دوهمې دورې په بیانولو لاس پورې کړو، په دې دوره کښې هم د پښتو زبردست لیکوال او شاعران تېر شوي دي، چه دادی وروسته بیانیږي.

## د دې دورې لیکوال او شاعران

میاروښان: د میاروښان اصل نوم بایزید او په «پیرروشان» میاروښان سره مشهور و، پلار یې عبدالله نومیده، د وزیرستان په کانیګرام کښې یې استوګنه کوله او یو ښه نیک سړی ؤ میاروښان په (۹۳۲ هـ) کال په دغه ځای کښې زیږیدلی دی دی په قام ورمړ (۱) پښتون دی. دا پښتون هلک په وړه کوټوالی کښې د پوهې او زیرکۍ خاوند و، پس له تحصیل څخه د پوره علم او فضل خښتن شو. وایې چه ده یو زبردست معقول او فلسفي دماغ درلود چه په عقلي دلیلونو کښې به چانه شوپړ کولای. دی په تصوف کښې هم دلوی لاس خاوند ؤ ده به همیشه پښتنو ته تبلیغ، وعظ او نصیحت کاوه ډیره موده یې د پښتنو د مشرۍ واګې په لاس کښې وې، د پښتنو د اتفاق، خپلواکۍ یو صحیح آرزومن و، او غوښتل یې چه پښتانه د مغولي طاقتونو په مقابل کښې کلک ودروي او د مقاومت روح په کښې واچوي ـ میاروښان د پښتو د خدمت په لار کښې هم پوره حقدار ګڼل کیږي. ده په څلورو ژبو یعنې پښتو، عربي، آردو فارسي یو کتاب لیکلی دی، چه خیرالبیان نومیږي، د خیرالبیان د نثر یو څو نمونې پیدا شوي

(۱) د پښتنو دانسابو کتابونو، ورمړ پښتانه بللي دي

دی مګر نور کتاب ورک دی، وایي چه دلندن په موزیم کښې شته. دلسمې پېړۍ د پښتو نهضت میاروښان ته منسوب دی. ځکه چه دده دلیکنو او کوښښونو په اثر پښتنو لیکوالو پښتو ته توجه کړې، او پښتو آثار ډېر شوي دي.

میاروښان سر بېره پر دې، یو تور یالی عسکرهم و، ډېره موده یې دمغلو په مقابل کښې جګړې کړې، او دپښتنو الی نومې ساتلی دی، چه تر ده وروسته ئې اولادهم پر قدم تللی دی نو په دې لحاظ ده ته مونږ یو صحیح مبلغ، واعظ، عالم، سیاس، فکرمن مشر، شاعر، نثرلیکونکی او داد ب حقدار وایو او ددې دورې دپښتو د نهضت سرلښکر یې ګڼو، میاروښان پر ته له خیرالبیان څخه دوه نور کتابونه هم لیکلي دي یوه حالنامه ده، چه دده د حالاتو په باب کښې ده، بل مقصود المومنین نومېږي، او په عربي دی، دخیرالبیان کتاب د طریقت، شریعت، او دیني مسئلو بحث کوي. وایي (۱) چه په قرآن او حدیث موافق یو کتاب دی، دخیرالبیان دنثر یوه نمونه داده: «ښې ویلي دي، رحمت دې وي پر ده، مرګ که بوړشي وسړي ته ناګهان نشته په دنیا کښې دسړي تل ترتله مقام ګوره ددغې زماني آدمیان غوا ږدي دنیا او هر چه په کښې دي. مشغول دي ډېر آدمیان ځینې په کرلو یا په بازر ګاني، یا په پوند ګلي یا په تور کښې باندې ځینې په نور نور چار مشغولي کا آدمیان - که څوک اس، اسپې لري کال تېرشي تمام - ځښتن یې اختیار لري چه یو دینار دې ور کړي د هر حیوان - یا دې بها کړي له دو وسوور مودې یوور کړي تمام»

دخیرالبیان نثر په قافیه دار او مسجع نثر کښې داخلیږي. که څه هم ځینې عبارات یې موزون هم وي، مګر د نظم په قانون ورته سړي مکمل نظم نشي ویلای، بلکه یو نیمګړی نظم باله کیږي داقسم شعر په هغه وخت کښې ددیني او مذهبي کتابونو دلیکلو یو مخصوص سبک و، چه تر ډېره وخته پورې چلیدلی دی، په پښتو کښې دا طرز سبک میاروښان راویستلی دی او دی یې موسس ګڼل کیږي دې سبک ته مونږ قافیه دار نثر او یا یو نیمګړی او آزاد شعر هم ویلی شو.

میاروښان په (۹۹۴ هـ) کښې وفات شوی دی، دا روایت هم شته چه دده اولادې دده هډوکي په تابوت کښې واچول او له ځانه سره به یې ګرځاوه بیا یې په کاڼي ګرام کښې ښخ کړ، لکه چه هلته یې زیارت مشهور دی.

شیخ عیسی مشواني: مشواني یوستانه قوم دی چه ځان په کا کړو ګڼوي؛ شیخ عیسی له همدې قومه دپښتو یو پخواني شاعر دی چه دشیرشاه سوري معاصر و، نعمت الله هروي لیکلي دي چه دهند په «دامله» کښې اوسیده، هر کله چه شیرشاه په (۹۴۸ هـ) کښې پاچا شوی دی، نو دشیخ عیسی دژوندانه زمانه هم د (۹۵۰ هـ) حدود باله کیږي - نعمت الله په مخزن افغاني کښې لیکي چه شیخ عیسی یو لوی ولي و، او دخدای په توحید کښې یې په پښتو، فارسي او هندي ښه شعرونه ویل، دپښتو یو شعر یې دادی:

| | |
| --- | --- |
| پخپله کار کړې، خپله انکار کړې | کله بادار یم کله مې خوار کړې |
| ته خو قادر یې په صفتو نو | کله مې نور کړې، کله مې نار کړې |
| عیسی حیران دی په دې شیونو | کله مې یار کړې کله اغیار کړې |

له دې بیتو څخه معلومیږي چه دی یو خوږ او زبردست صوفي ؤ، او په دغو بیتو کښې یې د تصوف ډېر لوړ افکار ځر ګند یږي.

---

(۱) ددولت دیوان.

میرمن نیکبخته: دزرمې پېړۍ یوه پښتنه شاعره او دشیخ الله دادمموزی لورده، پلار او نیکه یې په اشنغر کښې دممنزیو مرشدان وو، دې دینی علوم لوستلی ؤ او یوه عارفه ښځه وه، دا په (۹۵۱ﻫ) کښې دشیخ قدم په نکاح ورغله او په (۹۵٦ﻫ) کال کښې ورڅخه په «بدنی» کښې شیخ قاسم افغان پیدا شو. دې په نصیحت او عرفان کښې د «ارشادالفقرا» په نامه (۹٦۹ﻫ) کال د پښتو په نظم یو کتاب لیکلی دی - محمد هوتك وایی چه زما پلار ددغه کتاب یوه نسخه په (بنو) کښې لیدلې وه یو څو بیته یې له پټې خزانې څخه دلته رانقل کوو:

پهزړه ښاد شې ای مومنه !          په ظاهر په باطن سپینه
ظاهر زهد په اخلاص کړه          په زړه ټینګ شه له یقینه
شکر صبر په هر حال کړه          خود نمامه شه خود بینه

دخدای حق ته غاړه کېږده          نوري نوري وینا پرېږده
دنیا پاته له هر چا ده          په اخلاص کښې ځینې لېږده
ځو قوت لری په ځان کښې          سردیار په رضا کیږده

شیخ بستان بړیځ: دلسمې پېړۍ یو پښتون شاعر او مورخ دی، چه د (۹۹۸ﻫ) په حدودو کښې یې ژوندکاوه، په قام بړیځ او کورنۍ یې دقندهار په «ښوراوك» کښې و، پلاریې محمد اکرم نومیده او یو نیك سړی و، شیخ بستان په دغه کال دخدای دولیانو په بیان کښې د «بستان الاولیاء» په نامه یو کتاب لیکلی دی محمدهوتك وایی چه زما پلار دغه کتاب په «ښوراوك» کښې دحسن خان بړیځ کره لیدلی و، په دې کتاب کښې دڅېرو پښتنو ولیانو او شاعرانو حالات او اشعار بیان شوی دی او دده خپل اشعار هم په کښې وو- نعمت الله چه دشیخ بستان هم عصرو، لیکلی دی چه شیخ بستان به اکثر وختونه په یوڅېر غمجن او ویرمن صورت د پښتو اشعار ویل- چه کانې به یې هم په ژړا راوستل، دې بیا په ځوانۍ کښې هندوستان ته ولاړ، او هلته په (۱۰۰۲ﻫ) کال ددوهمې خورپه (۱۱) دهند په احمد آباد کښې وفات شو. دده یو شعر چه په ملی وزن دی، او بدله یې بولی په پټه خزانه کښې راغلی دی، چه دوه بنده یې دا دی:

اوښکې مې څاڅي پر ګریوان یو وار نظر کا پر ما          راشه ګذر کا پر ما
دمینې اور دی زما زړه کې وریت په انکار کینا          ښی تار و نار کینا
خودبه ویلې نږم چه مې زړه په تا مفتون کینا          ځان مې زبون کینا
اوښکې مې څاڅي پر ګریوان یو وار نظر کا پر ما          راشه ګذر کا پر ما

وکړه نظر زما په حال چه پروت رنځور یمه تل          په ویر نا سور یمه تل
لهزړه مې څاڅي وینې سور په و ینو خپل یمه تل          په اور جلیل یمه تل
اوښکې مې څاڅي پر ګریوان یو وار نظر کا پر ما          راشه ګذر کا پر ما

الله یار الکوزی: یو له پخوانو لیکوالو څخه دی چه د (۱۰۰۰ﻫ) په شاوخوا کښې یې ژوند کاوه دهٔ دخپل استاذ (شیخ صالح الکوزی) په نامه یو کتاب لیکلی دی چه «تحفهٔ صالح» نومیږی. په دې کتاب کښې دشیخ صالح او نور و نومو ړو پښتنو احوال او اشعار بیان شوی دی. دا کتاب د پټې خزانې له مأخذونو څخه دی. چه دشیخ محمدصالح او علی سرور لودی اشعار یې ځینې را نقل کړی دی، له دښه معلومیږی، چه الله یار د پښتو یو مورخ لیکونکی و.

علی سرور لودی: شیخ علی سرور، شاهوخیل لودی و، چه د هندوستان په ملتان کښې اوسیده وایي چه دی یو نیك سالك سړی او د کراماتو خاوند و، خلقو ته به یې وعظونه او پندونه کول او د تصوف مشکلات به یې حل کول، د ژوندانه وخت یې د (۱۰۰۰ هـ) خواو شا دی. په خزانه لیکي چه په «تحفه صالح» کښې دده اشعار راغلي دي. دالاندې غزل یې ورڅخه رانقل کړی دی:

محبت پیاله مې نوش کړه په مجاز کښې … د حق نور وینم په ستر ګو د ایاز کښې

درست وطن راته دریاب شو بې دیده … دیده مې نشي مګر خدای مې سبب ساز کې

که زه مړ شم هم له ګوره کړم سرپورته … ناګهان چه مې دلبر راته آواز کې

ګران بیلتون به دهغو مینو وینه … چه تل ناست وي په خلوت کښې سره ناز کې

ای سروره! غمازان شو بې حسابه
پاك الله دې صورت تش بې مغزه پیاز کې

ملا الف هوتك: د دوهمې دورې له مشهور و شاعرانو څخه دی، دی په خپله زمانه کښې یو ښه عالم و د کلات په اطرافو کښې یې استوګنه کوله، ده خپل «بحرالایمان» نومی کتاب په (۱۰۱۹ هـ) کښې لیکلی دی پښتانه شعرا لیکي چه د ملا الف هوتك دوه کتابونه لیدل شوي دي یو ه نصیحت نامه ده او بل کتاب یې بحرالایمان دی داد واړه کتابونه د اسلامي خویونو او عقایدو بیان کوي، یعنې مذهبي کتابونه دي، نو په دې اعتبار دی د پښتو دینې او اخلاقي شاعرانو کښې حسابیږي د ملا الف شعر ساده او آسان دی، پیچیده ګي او سختوالی پکښې نشته دده اشعار ټول د پښتو په لنډه مثنوي دي، دا سبك که څه هم له ده نه د مخه د زرغون خان، زرغونې میرمن نیکبختې او نورو په اشعارو کښې لیدل کیږي، مګر ملا الف ورته ښه ترقي ور کړې ده او دا سبك یې ژوندی کړی او مشهور کړی دی دا طرز یعنې د لنډې مثنوي سبك ځکه چه لیز آسان او روان دی، نو ډیر شهرت یې موندلی دی، او خصوصاً دیني او مذهبي لوی لوی کتابونه خو ټول په دې سبك لیکلي شوي دي. اوس یې یوه نمونه و ګورئ:

راشه واوره ای فرزنده … تا ته وایم ارجمنده

ته د پاك نبي پر لار شه … د نبي پر لاره لاړ شه

یو قدم له شرعې زویه … بیرون مه اخله نیکخویه

که بیرون یو قدم کیږدي … د نبي شرعه به پریږدي

نصیحت کوم زه تاته … مه جاروزه بلې خواته

تاته وایم زمانځانه یې … لا تر ځان را باندې ګران

ارزاني: د میاروښان یو فاضل، پوه او شاعر ملګری دی، دی یو پوره عالم و، په پښتو، فارسي، عربي او اردو ژبو پوهیده، په قام خویشکی ځمند او یو زبردست شاعر او ادیب و، ارزاني د روښان په پیروانو کښې د لوی نوم څښتن دی. آخون درویزه وایي چه یو تیز فهم او فصیح شاعر و، او په عربي فارسي، هندي، او پښتو کښې به یې اشعار ویل»

وایي چه دی د خیرالبیان په لیکلو کښې هم برخه لري. ارزاني یو مستقل کتاب هم لیکلی دی چه «چار رساله = چار زبان» نومیده، دا شاعر ټولو ورو ستنو شاعرانو لکه خوشحال، رحمان دولت او نورو یاد کړی دی. مستر راورټي ئې هم د پښتو په پخوانو شاعرانو کښې

شمیری، دارزانی یو پښتو دیوان (۱) په بر ټش موزیم کښې خوندی دی، په دې کتاب کښې (٤٩) قصیدې دی دسر بېتونه ئې دادی :

له الفه کوز تر یا | فقیر را وړه بې ریا
اول دفتر به و کښېم | په نامه د کبریا
دبل چا صفت به څو کړم | لکه نقش د بوریا
حق له شش جهته پاك دی | بې پایا نه لوی دریا

پر ته له دې څو بیتو څخه دده پر بردست پیاوړی ادیب د کلام مرغلری زمونږ لاس ته نه دی را رسیدلی.

علی محمد مخلص: دمیاروښان مرید او خلیفه و، د درویزه په قول، دارزانی شاعرورور دی. په وروستنو شاعرانو کښې، قاسم علی آفریدی دده ذکر کړی دی. میرزا خان یې دپا کې وینا خاوند بولی، دولت شاعر دده ادبی مقام ته داسی اشاره کوی :

شاه طبعانو یې زده قدر | ښه کلام درعدن دی
همدان مخلص د دولته | ددې دروپه سفتن دی

دولت شاعر دده ډیرې مرثیې ویلې دی. دی دروښان دسلسلې یو متصوف شاعر دی، مګر اشعاریې لاس ته نه دی راغلی.

ملاعمر: د ارزانی دریم ورور او دروښان له پیروانو څخه دی، دده د شاعرۍ په باب چاڅه نه دی ویلی، خو غالبه داده، چه دی هم یو عالم، فاضل او دقلم خاوند و اخون درویزه وایی «چه یو ورځې زه دخواجه صدرا کوزی مسجد ته لاړم، کورم چه امام یې ملاعمر خویشکی و» اخون درویزه ارزانی، علی محمد، ملاعمر درې واړه دپیر روښان مریدان ګڼی.

میرزا خان: دنور الدین زوی او دمیار وښان نمسی دی، دی دنیکه په تصوفی افکارو رنګ او له هغه نه یې فیض موندلی دی، په تصوف کښې یاخه افکارلری، عالم او ادیب سړی و راورټی انګریز دده په باب داسی لیکلی دی: «مرزا یو کرځند اوسیاح سړی، او په ټول افغانستان او هند کښې مشهور و، په هر ځای کښې یې شاګردان او پیروان درلودل، دی څه موده په راجپوتانه کښې هم اوسیده، او دهغه ځای راجاو ر سره احترامانه وضعیت کاوه، ده په خپلو اشعارو کښې دسانسکریت ځینی کلمات او الفاظ هم دقافیې دضرورت له امله استعمال کړې دی، ده بیا په آخر عمر کښې و اده و کړ او په «تیرا» کښې یې استوګنه و نیوله، چه تراوسه یې دمیا خیلو په طایفه کښې اولاده شته او خلك یې احترام کوی (۲)

مرزادشا جهان په وخت د د کن په جنګ کښې په (۱۰٤۰ ﻫ) کال شهید شوی دی، ټول وروستنی شاعران یې پېژنی، او دروښان دعلم دروازه یې بولی لکه چه دولت خان وایی :

دمرزا دنور الدین صفت به څه کړم | پیر روښان دعلم ښار، دی یې درو

دمرزا په پښتو شعر کښې دتصوف او سلوك علمبردار او دعلم او تصوف کان بلل کیږی. خوشحال خان ورته دپخې او تللې وینا چاوند وایی. دمیرزا دیوان دعروضی شعر یوه غوره نمونه ده، ده دخیر البیان دسبك پیروی نه ده کړی، بلکه هغه افکار ئې په یو ښه ښایسته قالب

---

(۱) فهرست بلومهارت

(۲) دی په خپل دیوان کښې هم وایی: «دیاد ګار ځای ئې خیبر دی»

کښې اچولي دي، دده شاعري دمعنا شاعري ده، نو ځکه ئې په الفاظو دسختۍ او نا مانوسۍ اعتراض کيږي .

په دې بيت کښې يې په تربيوي درس پروت دی :

که بهانه په دباغبان تربيت نه وای | دغه دومره فيض به چاوړه له پالېزه

عرفان او فهم په داسې پيرايه کښې ستايي:

چه دروح له معرفته خبر نه وي | دصورت مثال ليې نقش د ديوار وي

کل حجاب دسرې خپله ناپوهي ده | دهر چا ليده دفهم په مقدار شي

دده دتصوفي جذباتو داظهار په نمونه کښې دا يو ځو بيته راوړل کيږي :

چه ديار په نامه مينه دم په دم کړم | دغه ياد به يې دخوږ خاطر ملهم کړم

عام وخاص په هسې حال راخبرنه دي | چه په کمه تخته ښکل په کم رقم کړم

په يکتا نظر به واړه عالم وينې | کل اشيا به ورته جام لکه دجم کړم

دولت: دميا روښان دسلسلې يو مشهور شاعر و، چه په قام نوحانی دی(۱) دده ديوان دروښان دتصوفي مسلك او افكارو هنداره ده. دروښان ټولي کورنۍ ته زياته عقيده لري، خو په تېره دميرزاخان ډېر عقيدتمند دی لکه چه وايي :

مرزا ګنج راته خپل کوروښو دغني شوم | بيهوده منت به ولي دبل چا کړم

دولت دپښتو يو تکړه او غښتلی شاعر دی، ډېرو شاعرانو لکه خوشحال، کاظم او ميرزا حنان دده نوم ذکر کړی دی. دولت د تصوف ګران مسايل لــه مرزانه هم په آسانه ژبه په پښتو شعر کښې بيان کړي دي. ساده او روان شعر لري، دده دشعر له باغه د روښان او مرزا دوحدت دباغ بوی را خيژي، هر ډول اشعار يې لکه غزل، قصيده رباعی، قطعه او نور ويلي دي، په اجتماعي خوا کښې يې دا بيت ډېر قدر لري:

له خپل قام سره دوستي نه کا کم اصل | چه واصل ته رجوع لري اصيل دی.

دشعر په نمونه کښې يې دا يو ځو بيته ولولئ .

چه مې ډېر ډېر يادا وه دلبر مې بيا موند | لکه تږي مستسقي کوثر مې بيا موند

سعادت را سره ملګو له ازله | چه کامل واصل د حق رهبر مې بيا موند

ډېر انده په دود حيران وم په تياره کښې | تيز خورشيد تر ماه تابان ګوهر مې بيا موند

مسافر په ډېر کلو نو وم بې سره | اوس هزار شکر کوم چه سر مې بيا موند

ننداره د دواړو ګونو په نفس کښې | هر سبا بېګا کوم بصر مې بيا موند

بل ځای وايي: حقيقت دعالم واړه راښکاره شو- چه دفکر قدم کېښو دپر آسمانما.

ددولت ژوندتر (۱۰۶۶هـ) پوري يقيني دی، ځکه چه په دې سنه کښې، ده دها د يداد دميا روښان دنمسي مرګ ښودلی دی.

واصل: دی هم ديو ولسمې پيړۍ له شاعرانو څخه ګڼل کيږي دخوشحال خان معاصر، او ياتر هغه دمخه دی ځکه چه خوشحال خان يې داسې يا دوي :

چه دمو ښره په حساب دی | هيڅ مې نه دی واصل هېر

په بل ځای کښې وائي: له دولت و «که واصل و، که دانور و»

---

(۱) نوحانی يا لوانی يا لوڼ يو پښتون قوم دی، چه دسوري ورور ګڼل کيږي .

کاظم‌خان شیدا هم دمرزا او دولت په قطار کښې ذکر کړی دی او دښه کلام خاوندې بولی:

یو مرزا، دولت، واصل هم ... ښه کلام لري حاصل هم

مرزا حنان ورته دخوږو الفاظو ویونکی وایی: (ښه شیرین الفاظ ویلی دی واصل) داسې معلومیږي چه واصل هم ددولت دوختو شاعر او د «روښان» (۱) له پیروانو څخه دی؛ مګر دده اشعار تراوسه نه دی لیدلی شوی.

**امیر**: ددوهمې دورې په شاعرانو کښې داخلیږي، ده په (۱۰۲۳ﻫ) کال دپښتو په ژبه مثنوی دقرآن عظیم یو تجوید لیکلی دی، ددې کتاب له مطالعې نه معلومیږي چه امیر په عربی علومو کښې پوه او عالم و، دده داوسېدو ځای معلوم نه دی، اودژوندانه زمانه یې د(۱۰۰۰ﻫ) څخه راوروسته ده دامیر تجوید یوه کوچنۍ مثنوي ده دی په شعر کښې دملاالف دسبک پیرودی، اویو متوسط شاعر ګڼل کیږي کتاب یې په دې بیتو شروع کړی دی:

تل ثنا وایم شکر و نه ... د خاوند په نعمتو نه
چه قرآن ئې راستولې ... په سرور با ندې راغلی
چه ایمان یې له عرفانه ... مو نږ ته وښوله قرآنه

**ملامست**: ددې دورې له مشهورو شاعرانو او لیکوالو څخه حسابیږي، دی دخپل وخت یو ښه عالم او فاضل سړی و، د(۱۰۴۰ﻫ) په حدودو، دننګرهار په علاقو کښې اوسېده، په خیبر او پېښور کښې ئې هم استوګنه کړې ده ملامست یو ګرزند او سیاح سړی و، دده دوفات وخت نه‌دی معلوم، مګر قبر ئې په (شنوارو) کښې دی او په «مست با با» یا دیږي. ملا مست د(سلوك الغزات) په نامه دپښتو په نیم منظوم سبک یو کتاب لیکلی دی، مګر ځینې کامل عروضي شعرونه هم لري، په دې کتاب کښې دغزا ګانو حالات، مسلمانانو قربانۍ، دپښتنو مړانې، او نور تاریخي احوال بیان شوی دی، تصوفي دیني او اخلاقي برخه هم لري، په دې کتاب کښې داخون چالاك خټك دجهادونو بیانونه هم شته چه دملامست پیر او مرشد و. مست دا کتاب دغزا په روح لیکلی، او تصوفي شعریې هم دتورو او غزوله بیانه خالي نه‌دی، په حماسي رنګ کښې دتصوف بیان کوي:

دیقین زغره مې واغو سته سپاهي شوم ... د باور په تیغ مې غوڅ کړه ګمانونه
دمعرفت لینده په لاس له بدو جنګ کړم ... د حقیقت غشي مې ځي تر آسمانو نه

اوس ئې د یوه شعر دا یو څو بیتونه ولولئ:

چه ګاه موج دخوشحالۍ ګاهې دغم کا ... دا دزړه شعر ئې روددی که چشمه مست
معنوي مغنی را شه هم زبان شو ... له تا زده کړه دهر تار ګوښې نغمه مست
پر جهان مې دفریاد کو کې خورې شوې ... چه هر حال پر ژبه وایم دایمه مست
کوهستان لکه لحد په کښې دلګیر شه ... دا دزړه احوال به څو کوښې پر خامه مست
خوار خسته له هندو راجه راروان شه ... د کرمول په سرای تېره کړه غرمه مست

---

(۱) ښاغلي خوګیاني دکابل په (۱۵۵) شماره کښې لیکلي چه دولت او واصل په دروښانیانو مدحي کولي واصل په دبستان مذاهب کښې په «میاواصل روشني نامه نګار» یاد شوی دی.

مازدیګرئې دیدن راووړ ترکو لکه — چه ئې وليده غازيان هلته څپلمه مست
وکفار ته لکه شنه زمری غوریږی — هرسړی ئې وپه ډول وډ ما مه مست
مسته را شه دکو لك ننداره وکړه — چه‌غازیان‌ئې دیوانه دی که همه‌مست

۱-اخون‌درویزه: دیواسمي‌پیری‌یومشهور لیکوال‌اودیوې علمی‌اوادبی کورنۍ مشردی
اخون درویزه د(۹٤۰ھ) په‌خواوشا، دیوسف زودعلاقې په (ملېزو) کښې‌زیږدلی‌دی دده
پخوانی نیکونه لکه جنتی، جیون، مته‌،احمد، درغان په ننګرهار کښې‌اوسېدل، له‌دې کبله
اخون درویزه‌هم ځانته ننګرهاری‌وایی بیادده‌نیکه‌شیخ‌سعدی دیوسف‌زوسره له‌ننګرهاره،
مېلزوته ولاړاوهلته‌متوطن شو،مګرپلاری‌ئې چه(ګدای) نومیده په«چغرزو» کښې اوسېده:
اخون درویزه د(۱۰۹) کالو په‌عمرپه(۱۰٤۸ھ) کال وفات اودپېښور په«هزارخانه» کښې
ښخ‌شو اخون درویزه اودده کورنۍ په‌پښتو کښې ډېرشهرت‌لري اوپه اخون‌بابا یادیږی.
دی دسیدعلی(پیربابا)مریداویوعالم‌سړی‌و،عمرئې‌په‌وعظ اوتبلیغ تېرکړی‌دی‌دواعظ، خطیب
مولف مورخ اولیکوال‌په‌نوموستایل کېږی. اخون‌درویزه دپښتودتاریخ په‌لیکلو کښې هې
ډېر حق‌لري. دی‌د «دپیرروښان» یو قوی مخالف و، اوپه‌دې‌مخالفت کښې ځینی کتابونه
لیکلي دی. دده مشهور کتاب‌چه‌په پښتودی«مخزن‌الاسلام»نومیږی.دا کتاب یومذهبی
اودینی کتاب دی، عقاید او شرعی‌احکام په کښې بیان شوی دی. دمخزن دلیکلو سبك
دخیر البیان سبك ته ورته دی، دې طرزته مونږ مسجع نثر یانیمړی شعروایو، که څه
هم دوی ئی شعر بولی. داخون درویزه بل کتاب «تذکرة‌الابراروالاشرار» نومیږی،
دا کتاب په فارسی ژبه یوتاریخی کتاب دی. د«ارشادالطالبین» په‌نامه یوبل کتاب هم
دده په آثارو کښې ذکر شوی‌دی، پروفیسر ډورن روسی، اخون درویزه دپښتو ژبې یو
مشهور مصنف لیکونکی اودخوشحال خان همقطار ګڼی اودپښتو ژبې دادب په ژواندانه
کښې یې لوی رکن بولی.

دپښتو دادب په خوا کښې داخون درویزه اودده دکورنۍ خدمت یوڅرګندشی دی.
ددوی دلیکنو او کوښښونو په اثر پښتو ښه ذخیره پیدا کړیده.اوډېر خلك دده په
شاګردانو کښې دې خدمت ته تیارشوی‌دی. نوځکه آخون درویزه هم دیو ادبی مکتب
مشر اوجوړونکی باله شی، البته‌چه دموضوع په لحاظ داخون درویزه دکورنۍ نشریات
په دینی اومذهبی خوا کښې محدودوو. اوپه نورو خواؤ کښې یې ډېر څه‌نه دی لیکلی.
اوس دمخزن دنثر په نمونه کښې دایو څوټوټی ولولیء!

۱-(عمر نسفی هسې‌ویلی‌مبرهن‌دی،چه‌صوفیان دحق‌دوستان‌دی،هم‌دزړه‌په‌پاك کردن‌دی.

۲- درویزه چه عقاید په پښتووی، شفقت یې وپرلوی، هلك بر آزاد، پربنده‌وهم په
واړه پښتون خوا اوهرچه دوی به‌دا کتاب په‌زړه کښې ځای کا.

۳- خدای په‌هره ژبه بوله، عربی وی که فارسی وی، که هندی وی که افغانی وی،
په هغه ژبه یی بوله، چه دې زړه‌وی، دااقوال‌دامامانو، اوس اکثر عالم داوایی‌چه‌قران
په عربی دی، په ناحق فرض، واجب پښتو کوینه، دوی په داوینالغزیږی، نه پوهیږی،
دغه خوی دجاهلانو) که‌څه هم دمخزن نثر ټول په یوشان نه‌دی، په ځینو ځایو کښې
دوزن التزام ډېر اوپه ځینوځایو کښې دقافیوپابندی ډېره‌وی، خوغالباً جملی‌یی موزونی

وی، اوهم په دې شی کښې دخیرالبیان له نثر څخه فرق لري- بل فرق ئې دادی چه خیرالبیان ټول په یو شکل معلومیږی اوپه «مخزن» کښې پوره عروضی اشعار هم شته چه داخون درویزه اولادی اوپیروانو لیکلی دی.

داخون درویزه کامل شعر په مخزن کښې نه شته، خو قاضی میر احمد شاه رضوانی په «بهارستان کښې» دده یو مثنوی شعر راوړی دی چه یو دوه بیته یې دادی:

(راشه واوره زما وروره- فضیلت دصبر ګوره- صبر به دی پهر کار کښې ولی زیات په داروز ګار کښې) داخون درویزه دمخزن الاسلام قلمی نسخې خوراډیرې دی. اوپه هرځای کښې پیدا کیږی په هندوستان کښې چاپ شوی هم دی. یوه نسخه یې چه په (١٠٢٤هـ) کښې کریمداد کښلی ده، دلندن په برټش موزیم کښې شته.

عبدالکریم:- په کریمداد مشهور او دآخون درویزه زوی دی، عبدالکریم یو مشهور عالم اوعارف سړی و، دتصوف اوسلوک په خوا کښې ډیر شهرت لري، داخون درویزه دمخزن جمع کوونکی اوټولوونکی بلل کیږی- کریمداد په مخزن کښې له خپله ځانه هم زیاته برخه لري، ډیر خلک ورته د«پښتو محقق» وایی، دی که څه هم دخپل پلار په سبک لیکل کوی، مګر دهغه په سبک کښې یې دفکر اولغظ په لحاظ څه اصلاحات هم کړیدی، کریمداد عشقی شعرونه هم ویلی دی او کلام یې د کامل شعر رنګ ته نژدې دی- داځو بیتونه دده دی:

| | |
|---|---|
| هرڅوك له خپله سوزه ځهوییږی- | چه بې سوزه ګفتار نه دی چالیدلی |
| شاعری مثال بحر که پوهیږی- | کم شاعر یې له ګرد ابه راوتلی |
| ناقص ښښتی له افیاره- | او عارف له خپله ځانه ښښتېدلی |



وایی چه کریمداد په (١٠٧٢هـ) وفات شوی دی قبر یې دسوات په کانجو کښې دی او په شهیدبابا یادیږی د کریمداد تالیفات دادی:

١- تحفة الخانی، دکم عربی دینی کتاب پښتو ترجمه ده.

٢- فقه کریمداد، دفقهی مسئلو یو کتاب دی- ٣- په مخزن کښې هم یوه برخه لري.

٤- دعبدالکریم مکتوبات په فارسی دی-

خالق داد، داخون درویزه زوی دی، دی هم دپښتو شاعر او لیکونکی و یو کتاب یې د (شرایط واحکام ایمان) په نامه په پښتو منظوم کړی دی.

دخالق داد نور څه معلومات په لاس نه شته.

عبدالحلیم: داخون بابا نمسی دی پلار یې عبدالله نومیده. دمخزن په نسخو کښې دده اشعار هم لیدل شوی دی، اشعار یې ددیوان والاو سبک ته نژدې دی که څه هم اساساً دنیکه دسبک تابع او پیرو باله شی دا یو څو بیته دده دی:

| | |
|---|---|
| شهی ډیر غشی روغ کړی | عاشقان یې دی نوموړی |
| دوی ویشتلی پرغونه زده دی | پر میدان و رته ورغړی |
| عاشقان دایم په کار دی | دوصلت تارونه غړی |
| دوحدت له شنه دریابه | شنه درونه یې راوړی |

مصطفی محمد : د کریمداد نمسی او دنورمحمدزوی دی. دی هم دمخزن په ملحقاتو کښې برخه لري. دخپلو نیکونو په طرزیې اشعار ویلي دي او ددغه سبک پیرو دی، ده په دو هم ځل په (١١١٢ھ) کښې مخزن ټول کړی او جمع کړی دی.
دادوه بیته یې ولولئ!

الا غوندی تر غاړه یګانه محبوب وغواړه
یګانه محبوب به مومې که ته وشلېږې له واړه

ملا اصغر:- داسړی داخون درویزه ورور دی، دی هم ملا او شاعرو، دمخزن په آخر کښې یې یو مات ګوډ غوندې شعر راغلی دی چه دسر بیت یې دا دی:
واوری یارانو نبی ناست په جماعت و جبرائیل ورپې راغلی له ښه خدایه پرې رحمت و
عبدالسلام : داخون درویزه په شاګردانو او پیروانو کښې حسابېږي، دمخزن په یوه نسخه کښې یې د کلام نمونه لیدله شوې ده، شعرئې عروضی خواته نژدې دی خو نور معلومات ئې په لاس نشته، دعبدالسلام یوه ټوټه کلام دا دی:
(یو وییې بهدرته وایم دصدق دبزرګي درسول له جماعته - چه صدیق وسر حلقه داولیاو دغه لوی بخرې موندلی له رحمته - دویم عمر فاروق دی چه مکه یې کړه وزګاره، له کافرو له بتانو په یکلخته- دریم عثمان ذی النورین دی چه درست کاروان ئې و دخدای په رضا ایښې چه خبرشو درسول له نبوته- څلورمی مرتضی علی دی، چه بهدی پهدلدل سور شه دغه کافران یې مړه وله هیبته)
عمرخان : دمخزن په یوه نسخه کښې یې اشعار راغلي دي داسې معلومېږي چه د درویزه له پیروانو څخه دی، په خپله اخون درویزه په تذکره کښې وایي چه ملا عمر شلمانی زما شاګرد و. دعمرخان کلام ښیي داخون درویزه د کلام پشان دی لکه چه وایي:

دابیان اخون ویلی په پښتو و ، ومعنیٔ ئی پههرچا ویلی نه شوه
بیچاره عمر خان، چه ورخبرشه ، تار په تار معنی ئی و وې
دی فاسق پراګنده په مخلوقات کښې ، پرده فهم له څښتنه عنایت دی

میرخان : دده نوم او کلام هم دمخزن په یوه نسخه کښې لیدل شوی دی. دی د کریمداد شاګرد معلومېږي. مرزاخان دمیرزا او دولت په ډله کښې دسلوك شاعر بللی دی: یو میرزا، میرخان، دولت دعلم کان وو ضرب دسلوك شعر یې کړی دی افضل
شیرمحمد: دده اشعار هم دمخزن دیوې نسخې په آخر کښې راغلي دي، داسې ښکاري چه داخون درویزه داولادې له شاګردانو څخه و، اول جلد «پښتانه شعراء» لیکي چه دی دننګرهار دخوا یو طالب العلم و او ده بردینی او اخلاقی اشعاریې ویلي دي. داقطعه دده ده:

یا ګو ښه وای له سړیو ، پر آسمان باندی سحاب وای
یاعاشق وای پر مهر یو ، یامعشوق لکه مهتاب وای
چه نه دا شو نه هغه شو ، شیرمحمد کشکی تراب وای

دعلم په باب وایي:

علم فرض دی له طاعته ، پر مړه هم په عورته
سکه طلب د علم بویه ، نتیجه یې ډېره لویه
چه طلب د علم نه کا ، غه عور ته بهځوك څه کا

رحیمداد: دا سړی هم د اخون درویزه له اولادې او کورنۍ څخه معلومیږي کیدای شي
چه یا یې زوی او یا یې نمسی وي، د مخزن په یوه قلمي نسخه کښې چه په (۱۱۴۴ هـ) کښې لیکله
شوې ده: دده یو خوږ مدحیه شعر راغلی دی چه یو څو بیته یې دا دی:

تر شیرین اسم دې جار شم محمده　　سر فرازدې په دیدار شم محمده
سعادت د دواړو کونو زما دا دی　　که دې خاورې د دربار شم محمده
درمې و بوله چه در شم ستا تر دره　　تر پنځرو به دې بلهار (۱) شم محمده
ستا ثنا به د لوی و یلای نشم　　که بلبله د سهار شم محمده
ستا له جامه جرعه را کړه چه یې نوش کړم　　سر تر پایه په خمار شم محمده

عبدالرحیم: د مخزن په دغه وړاندې نسخه کښې د دې سړي شعرونه هم راغلي دي، مګر په یقین
نه ده معلومه چه څوک و؟ د احمد شاه بابا په زمانه کښې یو بل عبدالرحیم نامي شاعر هم موږ ته معلوم دی
چه (وروسته به بیان شي) مګر دده او دهغه د اشعارو ترمنځ ډیر فرق موجود دی نو ښایي چه
دا سړی پرته له هوتک عبدالرحیم څخه بل عبدالرحیم وي او د اخون درویزه په کورنۍ او یا
پیروانو کښې داخل وي. کلام یې د مخزن له سبک سره اړخ لګوي لکه چه وایي!

دغه هسې ښایسته بشرې شوې تورې خاورې　　چه په ښایست یې مخې نه وو د پسرلي ګلونه
دادسمند سواره یې پري یا ستا پر زمکه باندې　　په ډېر ارمان د ګور بندیان شول زلمي ناوې جونه
دا د دامان آهو به خلاص نه شي په تېښت له مرګه　　نه به پرې ورځني خلاص شي د هوا مرغونه
دا د دریاب ماهیان به څوله مرګ غریږي هلته　　چه پرهر لوري چاپیر شود قضا جالونه
یو ذره د محبت و عبدالرحیم ور کړې ای خدایه　　چه ستا بې یادوي نورنه وي په زړه نور فکرونه

احمد: د مخزن په دغه وړاندې ذکر شوې نسخه کښې د دې سړي شعرونه هم لیدل شوي دي.
د (۱۱۴۴ هـ) په حدودو د احمد په نامه موږ ته کوم بل شاعر معلوم نه دی، نو ځکه دی دا خون
درویزه له پیروانو او شاګرانو څخه، د دوله مسې پیړۍ د اولې برخې شاعر بولو. دی د جنت
په بیان کښې د قصیدې په رنګ یو اوږد شعر لري چه یو څو بیتونه ځني دلته را اخلو:

جنت یې جوړ کړ په زیړ ګلونه　　چه په کښې نا ستي د جنت جونه
کنګرې یې روغې کړې د سرو زرو　　شهد و شکر دي په کښې رودونه
زلمي به واړه د یرش کلن وي　　جونې به کمې تر شل کلونه
جونه به نا ستې پر زلیچو وي　　چنګونه اینې پر با لښتونه
نه به زړې شي نه به بد رنګه　　هسې به تل وي د جنت جونه
جنت ګلزار دی جونه بلبلې　　زلمي توتیان دي پر چغارونه
احمده ژاړه دیدار یې غواړه　　دیدار بهتر دی تر جنتونه

اخون قاسم: د پښتو له مشهورو کسانو څخه دی، یو کتاب یې چه (فوایدالشریعه) نومیږي
د مخزن الاسلام پر سبک لیکلی دی د فقهې او شرعې مسئلو بیان کوي، دا کتاب په پښتو کښې
ډیر شهرت لري او پښتنې میرمنې یې په کورو کښې وایي، اخون قاسم د شنوارو پاپینخیل دی.
مستر راورټي مشهور مستشرق لیکي چه دی په اشنغر او یوسفزو کښې اوسیده دده د ژوند زمانه
ښه نده معلومه. مګر ده په یو ځای کښې د اخون درویزه او د کریمداد شهید ذکر داسې کړی دی.

اخونان شهیدان واړه خدای پیدا کړه　　چراغونه و په پښتو یې دین بیان کړ

له دې نه معلومیږي چه دی د کریمداد د مرګ په وخت کښې (۱۰۷۲ هـ) لا ژوندی و. د فوایدالشریعه
یوه نسخه چه په (۱۱۲۵ هـ) کښې لیکله شوې ده، د لندن په موزیم کښې شته دا کتاب چاپ شوی هم دی.

(۱) ځار قربان.

بابوجان: بابوجان هم دخیرالبیان او مخزن الاسلام دسبک یو ادبي پیرو دی تر (۱۰۵۰ ه) څخه ورسته ژوندی و او داخون درویزه دزامنو معاصر دی.

مسټر راورټي وايي چه دی دنورستان له کافرو څخه و چه وروسته بیا مسلمان شوی دی میراحمدشاه رضواني هم وايي چه دی له دغه ځای څخه یو ملا په لوټ لښي راوستی و، دده له څخه هم دخیرالبیان په طرز اشعار ویلي دي مګر ځیني خالص عروضي اشعار هم لري. وايي چه دده قبر په یوسفزو کښې مشهور دی هلته یې نمسی هم شته او دده قلمي دیوان ور سره دی. دبابوجان ځیني اشعار مسټر راورټي په (ګلشن روه) کښې انتخاب کړي دي قاضي میراحمدشاه رضواني هم په شکرستان کښې یو څه راوړي دي اشعار یې ټول اخلاقي او مذهبي دي دا بیتونه دده دي:

دحاتم نوم به جاري وي تر قیامته — دا زل بخره یې وه له سخاوته
حاجتمن به ناامید ترې نه تلو — ور کول یې وو یې اجره یې منته
دسوالي زړه به یې زوغ په مرحبا کړ — لاهل نه و فقیر انو له خدمته
په شارونو ئي نوم ولاړ دسخاوت شو — پادشاهان یې په غصه شول له شهرته
همت دخدای له خزانو دی بابوجانه — همت ناک دي څښتن نه لابي همته

دبابوجان یو کتاب په برټش موزیم کښې موجود دی، چه (۹۲) مخه دی بل اثر ئي دعا یې سریاني ده. یو بل زوړ قلمي کتاب ئي چه دین او اخلاقي مباحث لري او په نیم منظومي سبک دی. هم ایدل شوی دی.

## خوشحال خان خټک



خوشحال خان خټک

خوشحال خان دپښتو ژبې دادب د میدان یو غښتلی پهلوان او دخټکو دبڼ یو خوشنوا بلبل دی. پلاریې شهبازخان نومیده چه دخټکو مشر او سردارو. خوشحال خان په (۱۰۲۲ ه) کال دخټکو په (سرای) کښې دوجود ډ ګرته راغی. هغه وخت چه لوی شو نو دشاعرۍ هنګامه یې جوړه کړه. دی په رښتیا یو قومي او ملي شاعرو، دوطن او قوم په غم غمجن او د پښتنو په درد دردمن و پدې لار کښې یې ډیر زحمتونه وګالل، په کلک او ټینګ عزم یې دملت او قوم دلویې دپاره له وینو سره لوبې وکړې، دپښتون په ننګ ئي توره له ملا

وترله، د زمري په څوله کښې يې خپل همت پرې نښود د ملت ساتندوی د پښتنوالي ګټندوی او د پردو دښمن معرفي شو چه کاله په هندوستان کښې بندي ؤ، بيائې له مغلو سره ډيرې جګړې وکړې او د اورنګ زيب پادشاه سره يې ترمرګه دښمني لرله. خوشحال خان د توري سره قلم هم پلاس واخست. د شعر او شاعرۍ بازار يې تود کړ، د اباسين په شان په چپو راغی، د جنګونو او جګړو حالات يې بيان کړل. د پښتنوالي درانه خويونه، پاك اخلاق، او د ژوندانه دستورالعمل يې وښود، د اجتماعي حيات په مزه يې خلق پوه کړل، ښيتانه يې د قوم او ملت خدمت ته راوبلل د تصوف او سلوك علم او فلسفې په خوا کښې هم لګياشو، لنډه دا چه هيڅ قسم مضمون يې پرې نښود ـ عشقي، اخلاقي، اجتماعي، وطني، فلسفي، تصوفي، جنګي، فکاهي او نور هر قسم مضامين يې د شعر په لباس کښې ونغښتل، د هرچا د ذوق د پاره يې پخپل باغ کښې رنګارنګ ګلان وکرل ساده او آسان شعر يې ووې، د خبر و ملك يې فتح کړ او د پښتو د ادب استاذ او يو نوميالی اديب وپېژندل شو، د ده له شعره د پښتو ژبه په آب وتاب شوه، او د بلبلو د نارو د پاره يې د خبرو او وينا باغ جوړ کړ لکه چه وايي:

ما خوشحال چه په پښتو شعر بيان کړ  
د پښتو ژبه به اوس په آب وتاب شي

هميشه به پرې نارې وي د بلبلو  
داچه ساز کړ نن خوشحال په ويل باغ

غرض دا چه خوشحال خټك د پښتو ادب يو ډير لوی اديب، تکړه شاعر، د ملت پټنګ د پښتنوالي ليوال يو زبردست مفکر او سياس ومنل شو، د خپلو پردو، لويو وړو په ذهنو کښې د ده د شهرت جلوه ښکاره شوه او ديورب خلقو ورته د يو ملي قومي لوی شاعر خطاب ورکړ. دی پرته له شعره د پښتو په نثر کښې هم د لوی لاس خاوند او د پښتو د نثر د نوي دور موسس باله کيږي، د پښتو نثر يې د خيرالبيان له طرزه راواړاوه يعنی د شعر له رنګه يې راوويست او د محاورې رنګ ته يې نژدې کړ نو په دې اعتبار خوشحال خان په نظم او نثر دواړو کښې د مشرۍ او استاذۍ حق لري او د پښتو ژبې يو پوخ شاعر، قوی نثر ليکونکی؛ پوه مورخ او مشهور مؤلف ګڼل کيږي خوشحال خان د کلاسيکي ادب استاذ او مشر او د يو ادبي مکتب خاوند دی. د ده په دې ادبي مکتب کښې ډير خلق پالل شوي او روزل شوي دي. د ده کورنی هم ټوله د علم او ادب کورنی وه، نو ځکه دی د يو زبردست ادبي مکتب مؤسس او جوړوونکی بولو او په پښتو ادب کښې يې د لوی شان خاوند ګڼو.

ده په پښتو او فارسي کښې ډير آثار ليکلي دي مستور راوړتي د ده آثار له ( ۲۰۰ ) هم زيات بولي خو د پښتو مشهور کتابونه يې چه معلوم دي دا دي:

۱ ـ د پښتو اشعارو ديوان چه تقريباً ( ٤٠ ) زره بيته دي ۲ : ـ د پښتو تاريخ: مګر نه پيدا کيږي ۳ : ـ عيار دانش. د انوار سهيلي پښتو ترجمه ده ـ ٤ : ـ پښتو هدايه چه له عربي څخه يې ترجمه کړې ده.

(۱) د عيار داش د نثر يو ټوټې دا دي:

۱ ـ پادشاه ووی په دې حکم کښې له ماخطا وشوه او خمره په حال د قهر کښې زما له خولې وختله ولی بايده د چه تا په هغه چارې کښې د غه رنګ تأمل په ځای راوړ، چه لايق د حال د ناصحانو دی يو ورځ د باغ څښتن ناست و په تماشا د ګلونو بلبله يې وليده چه مخ به يې په پاڼو د ګل مېښ او په

---

(۱) وايي چه د پېښور په زيارت کلي کښې د يو سړي سره د خوشحال خان يو زوړ قلمي منظوم کتاب شته چه د علاجونو او نسخو بيان کوي. (د کابل ۱۷۹ ګڼه)

فریادفریاد بەیې یری ناري وهلې-ورق زرنگارد گل بەئي پەتیرەمینو کەیوتربله جدا کاوه، دانثرساده، آزاد اومرسل نثراومحاوري تەنېژدې دی ،مگرپەځینو جملو کښې لکه «تأمل په ځای راوړ ورق زرنگار» دفارسی تأثیراورنگ معلومیږی خوشحال خان په (١١٠٠ﻫ) کښې لەدنیاتیرشوی اوپه (سرای کښې ښخ دی) اوس دده یوڅو بیتونه دلته راوړو :

چەڅر گنده سربازی کاندی دتورو
زەخوشحال خټك ترهسی هنر جار شم

حماسی :

لا پەخوب کښې پەلرزه پر یو زی له کټه
چەدچاتر غوږز مادتوري شرنگ شی

دخوشحال خټك خوښی پەهغەورځ ده
چەبر ښنا وشی دتورو اود غرو

دپښتون پەننگ می وتړله توره
ننگیالی دزمانې خوشحال خټك یم

❁ ❁ ❁

وگړی واړه کاروته خپل کا
مردان هغه دی چه کار دبل کا

څو چه آرام گټی دنیکو نام گټی
دخوږ وږدونو دارو به تل کا

❁ ❁ ❁

اجتماعی :

بنیاد دچارې په مصلحت دی
بیا د مردانو په ښه همت دی

چه سره یوشی داد واړه توکه
واړه دولت دیعزت حرمت دی

❁ ❁ ❁

عشقی :

توره چەتېره ښېږی خو گـدار لره کـنه
زلفې چەوٮول شی خوخپل یار لره کنه

ولی راته وائی چه پەښکلو نظرمه کړه
ستر گی چه پیدادی خو دیدار لره کنه

❁ ❁ ❁

تصوفی :

کەمسجد گوري کە دیر
واړه یودی نه شته غیر

یومی بیا موند پەهرڅه کښې
چه می وکړه دزړه سیر

هغه ځای په سیر گرزم
چه تري نه رسیږی طیر

خوشحال یووینی خوشحال دی
ورنه ورك دی غیر وزیر

## غزل

په کاته کاته می ستر گی پەخاتەشی
چه خبردې دراتلو را باندی وشی

تەخواوس لەمانه ولاړدی مرور شوې
دازمایاری دې هم گوندی پەزړه شی

چه دیدن دمحبوب وکړمه تازەشم
لکه کښت چه پەباران سرەاوبەشی

گوره تارا باندی کوم کودې وکړې
کەپەپیښو درځنی دروم زړه می نەشی

پەارمان دهغه وقت یم دریغه دریغه
که دزنی سیب یی بیادمایه خوله شی

دخپل یار داجدیی یوهسی کار دی
لکه روح چه له وجوده په واته شی

بخته هومره مدد بیارا سره وکړه
چەپەغېږ کښې می بیاتللی یارویده شی

دخوشحال سلام پەواړه وښویا رانو
گوندی بیامی پەلیدوسره زړه ښه شی

جمال‌خان : دخوشحال خان‌مشرورورو ، لوی‌ولی‌الله اوصوفی تېر شوی‌دی زیارت ئې اوس‌په‌فقیر بابامشهور دی.

دی هم دپښتو شاعر واو دیوان ئې شته (١)

اشرف خان هجری: دخوشحال‌خان مشرزوی‌دی چه په(١٠٤٤ﻫ) کښې‌زیږیدلی دی.

دی هم دخپل پلار پشان یوتوریالی پښتون اوادیب‌و، په خپله خوشحال‌خان دده دتوری اومړانی ستاینه ډېره کړې ده داشرف‌خان دشعر دطبیعت زورهله‌ښکاره شوچه‌په(١٠٩٣ﻫ) کښې اورنګ زیب دکن ته بندی بوت، هلته‌به ئې تل دوطن اوخپلو خوږو یارانو په یاد شعرونه ویل لکه چه وایی :

ماهاله دځان ماتم وکړ په وینو ... چه اټك وته می شاکړه په ژړاشوم
اوس به څه‌دوطن کانې بوتې‌ژاړم ... درخصت سلام می وکړترې جداشوم

هجری دخوشحال په ادبی مکتب کښې دلوړ مقام څښتن دی ، دشعریو دیوان یې درلود مګر نسخې ئې کمې پیدا کیږی وایی چه یوه قلمی‌نسخه یې په برېټش موزیم کښې شته (٢) دهجری‌څه اشعار چه لیدل شوی‌دی هغه په‌عشقی، اخلاقی اووطنی خواو کښې‌دی

هجری دسپین ږیرتوب په‌وخت په(١١٠٥ﻫ) د(بیجاپور) په کلا کښې وفات شوی‌دی،وایی چه افضل خان بیادده مړی له بیجاپور څخه راوړ او په (سرای) کښې یې دفن کړ.

داشرف خان یوڅو بیتونه دادی :

دارواح دکوچ نیلی‌په‌زړه کښې‌زین‌شول ... چه‌په زنه‌می ویشته دشباب سپین‌شول
دځوانی بهار چه ویښ له بدنه ... دپیری‌په‌خزان نورویښته زرین کول
هسی وینی می‌غم توبی کړی‌له ستر ګو ... چه‌می نمری‌دصورت هم‌رنګین شول

❀ ❀ ❀

شورش مکړه دګردون له کش مکشه ... لومه کلکه کامرغی په‌اضطراب
دنن کار طمعه هر ګز له سبا مکړه ... سبا ګوره هویداشی دکوم کارمخ

❀ ❀ ❀

اه وسوز می باطل مه ګڼه در ویشه ... ستر ګی هله کاږدا چه‌زړه‌په‌دردوی
تخت‌وتاج ته‌به سر کوز دهمت نه کا ... چه په‌داد ددهرپوه آزاده مردوی
دامحال دی‌چه‌شاعر به په پښتو کښې ... بل‌هجری غوندی په‌فن دشعر قردوی

❀ ❀ ❀

عبدالقادر : دخوشحال خان‌زوی او یونومیالی‌ادیب‌دی، په‌سلوك اوتصوف کښې‌لوی لاس لری دخپلی کورنۍ یوروښان ستوری دی، پس‌له خوشحال‌خان څخه‌په‌پښتو ادب کښې دوهم پهلوان او په نظم اونثر دواړو کښې غښتلی دی‌ډېر تالیفات لری‌دخو شحال خان په‌ادبی مکتب کښې‌اوله درجه‌سړی‌دی ،میراحمد شاه رضوانی وایی چه‌عبدالقادر یو خوږ ژبی او نکته سنج شاعرو ده‌عشقی، تصوفی، اخلاقی اواجتماعی اشعارویلی‌دی خوپه‌شعر کښې ئې دتصوف رنګ‌غالب‌دی شعرئې ساده اوخوږدی خپل اشعار دزړه وینی بولی :

---

(١) دمحمداجمل‌خان خټك لیك.

(٢) په پېښور کښې دفتح محمد خټك سره هم یوه قلمی‌نسخه شته .

رنگینه شعرمې مه گڼه الفاظ ـ داروان زما له زړه دوینو رودي.

عبدالقادر په (١٠٦١ هـ) کښې پیدا شوی او تر (١١١٤ هـ) پورې ژوندی و د پېرتا لیفات او کتابونه لري، راوړتې ئې د (٦٠) کتابو خاوند بولي، دده مشهور کتابونه دا دي:

١ ـ داشعار و دیوان ٢ ـ گلدسته، دسعدي د گلستان پښتو ترجمه ده قلمي نسخه ئې په بریتش موزیم کښې شته ٣ ـ یوسف زلیخا، نظم دی ٤ ـ حدیقهٔ خټك په نظم وه ددې کتاب هغه نسخه چه د عبدالقادر په خپل خط وه (محمد هوتك) لیدلې وه ـ نصیحت نامه داربا عی دده ده:

که سپین اوسره ئې په کور کښې تل وي — چه نه ئې علم نه ئې عمل وي

بنیاد ئې نشته آخر به خوار شي — بخت به تر کومه ور سره مل وي

دعبدالقادر دالاندې شعرونه چه له (حدیقې) ځخه پټې خزانې رانقل کړي دي ولولئ:

## غزل

دریغه نور غمونه لیرې شوې له دله — پکښې غم د خپل اشنای وی تل تر تله

شبنم وصل د گل بیاموندہ خاموش شو — ترې محرومه شوه چه شور کاندې بلبله

ښه چه ژبه دې قلم شوه په مجلس کښې — شمعې تا چه د خپل سوز قصه ویله

عاشق هیڅ نه وخبر د عشق له سوزه — دا لمبه پرې معشوقې ولگوله

دفانوس په پرده ځراغ کله پټیږي — که ئې مخ په پلو پټ وما لیدله

په ماتم د پروانه چه ئې ځان وسو — شمع اور په تندې بل کړ گر زیدله

درسته شپه دې په نارو عبدالقادر کړ — ته بیغمه په پالنگ باندې ځمله

## رباعی

وخت د خزان و. ومې لیدلې — یو ځو بلبلې چه ژړیدلې

خوارې خسته وې، وې مې سزائې — چه بې گلونو وپا یېدلې



صدرخان: دخوشحال زوی او د پښتو ژبې شاعر و داشعارو دیوان ئې پادرې هیوز انگریز لیدلی وا واقتباس ئې هم ځنې کړی دې. «خوشحال په ادبي مکتب کښې له هجرې او عبدالقادر نه وروسته مقام لري» دمینې د دنیا سره ډېر علاقه مند ښکارې نو وائې:

د عشق یو سبق کافي دې — نور د درست جهان دفتر هیڅ

وائي چه صدرخان د نظامي (خسرو اوشیرین) هم په پښتو نظم ترجمه کړې دې مگر کمیافت دی دده «ډلې اوشهې» او د آدم خان او درخانۍ قصې هم په نظم کړې دي ددې دواړو کتابو قلمي نسخې په برتش موزیم کښې شته، د آدم خان قصه ئې په (١١١٧ هـ) کال لیکلې ده ابتدئې داده

ربه زړه زما چمن کړه — دتا یاد پکښې گلشن کړه

استخوان مې پنبه زار کړه — پکښې اور دعشق انوار کړه

هغه اور په ما لنبه کړه — خاکستر مې دا پنبه کړه

زما زړه لکه لاله کړه — د زړه وینې مې پیاله کړه

سکندر خان: دا سړی هم دخوشحال خان له زامنو څخه دی چه دده دمکتب یو پیاوړی ادیب و دیوان ئی نه پیدا کیږي، فقط پادري هیوز ئی یو څو غزل «په کلید افغاني» کښي راوړي دي. کلام ئی خوږ او عشقي دی وائی چه دده (مهر او مشتري) په نامه یو کتاب په پښتو نظم کړی دی. دا بیتونه دده دي:

ستا د زلفو مار چیچلی نه رغیږي　　　په نستانو په زیارتونو په دم هم
تا چه مخ ور ته ښکاره کړ لی نی شو　　　پاس دغرونو په سر ګرزي په سم هم
هغه راز د محبت چه پټ له تا دي　　　زړه خبر ور ځني نشو قلم هم
دخوشی پیاله په لاس کښي نن زما ده　　　درد زحمت را څخه وتښتیده غم هم



ګوهر خان: دخوشحال خان زوی دي، وائي چه دشعر دیوان ئی هم درلود، او یو ښه ادیب ؤ مګر شعر ئی نه دی لیدل شوی.

بهرام خان: دی هم دخوشحال خان زوی کیږی، شاعر او لیکونکی و. پخپله خوشحال خان وایی:

چه په داخوبی بهرام انشا املا کا　　　عطارد دي نور قلم له لاسه کیږدی.

دده اشعار هم نه دی لیدل شوی.

حلیمه: دا دخوشحال خان لور وه، چه ده عبدالقادر سکه خور کیده. یوه عارفه او عالمه ښځه وه د تصوف کتابونه ئی لوستلي وو: دعبدالقادر په کور کښي به ئی هم د نورو ښځو ته لوست کاوه قرآن عظیم ئی هم یاد ؤ، حلیمه یوه ادیبه پښتنه وه، د پښتو ښه اشعار به ئی ویل د دي اشعار دحقیقت پر لاره او په هغه وخت کښي په د پښتو شعر دانانو خوښول یو څو بیته ئی دا دي

د آشنا په فکر خوښه هسی شان شوم　　　نه یو هیڅ زم چه ممتاز که نور جهان شوم
وهر چاو ته چه ګورم وا هم دی دی　　　د جمال په ننداره ئی شاد مان شوم
غیر فکر می له زړه نه رابهر شو　　　پرخلیل و پر عدو باندی یکسان شوم
حلیمی دغماز مکر زیات له حده شو　　　چه د بیل یاره نه کا په ګمان شوم

ویلي شو چه د خوشحال خان په ادبی مکتب کښی دا پښتنه هم لوړه درجه لري.

خواجه محمد بنګښ: دا سړی هم د پښتو له مشهورو شاعرانو څخه دی، دخوشحال خان معاصر او د اورنګزیب په وخت کښي ژوندی ؤ. خواجه محمد د پښتو یو پوخ شاعر دی ښه قوی او معنی دار کلام لري. دی دیوان کامل دیوان خاوند دی مګر دیوان ئی ټول نه دی نشر شوی، یوه برخه ئی مستر راورتی په (ګلشن روه) خپره کړیده. د عشقي، عرفاني او اخلاقي اشعار ویلي دي دا بیت ئی په اخلاقی خوا کښي یو قیمتي بیت دی:

زړونه مه ماتوه لعل د بدخشان دی　　　بیا مشکل دی رغول د شکسته ؤ

دی هم لکه دخپل وخت د نورو شاعرانو د مغلو له مظالمو څخه سرتکوی او وائی:

د اورنګ په پاچاهی کښي می نیاو نشی　　　زه خواجه محمد به ووژم و بل لور ته

دخواجه محمد نور حالات معلوم نه دي، خو د پښتو په شاعرانو کښي د ښې درجې خاوند دی دا یو څو بیته ئی ولولی:

چه بادشاه ئې د حمله و بنا یسته و — خبر وا خله دعا جزو خوار خسته و

زړه مې ستا په محبت سره تړلی — نظر و کړه په دا خپلو دل بسته و

د چمن ګلونه واړه یې تازه شو — شمال راغی ستا د مخ له ګلدسته و

درست ئې و ویستم له عقله له شعوره — ستا خوږو خوږ و خبرو آهسته و

## رحمان بابا

رحمان بابا هغه څوک دی چه د پښتو لوی واړه، ښځې او نر ئې په ښه شان پېژني ټولو غوږونو ته دده خوږ او له تاثیره ډک نوم رسیدلی دی، د پښتو بابا او د روحاني دنیا مشر دی وائي چه دده له ملا محمد یوسف یوسف زي څخه فقه. تصوف او نور علمونه زده کړي او ویلي وو: تل به ئې د خدای عبادت کاوه



(رحمان بابا)

رحمان بابا یوازې شاعر نه و بلکه د خدای پاک یو نازولی دوست و دده په زړه کښې د حقیقي عشق ډېره بله وه، په دنیا کښې ئې بې له خپل محبوب څخه د بل هیڅ شي سره علاقه نه درلوده، وائي چه دی به د یوې ونې لاندې ناست و او د خپل حقیقي محبوب په مینه او محبت کښې به ئې په پښتو ژبه خوازه اشعار ویل دده شعر ټول الهامي و څومره جوش او خوند او لذت چه د رحمان بابا په شعر کښې پروت دی هغه به د بل یو شاعر په شعر کښې هم نه وي نو ځکه دی حق لري چه وائي :

خوشحالان او دولتان مې غلامان دي — زه رحمان په پښتو ژبه عالمګیر یم

محمد هوتك په خزانه کښې وائي چه «د خدای دوستان د رحمان بابا شعرونه ډېر لولي او خوښوي او عام خلق فالونه پرې ګوري حتی چه دښمني هم دا کتاب ډېر وائي، خدای تعالی دده په وینا کښې هسې برکت اېښی دی چه د هر خوږمن زړه دارو په کا» څومره چه د رحمان بابا شعر ته

دغورپه سترگه کتل شوی دی نوځکه دشعرنه پورته یومقام لری. په دغه مقام کښې بلخوك دده سره ددری دوو حق نه لری؛ هم داوجه ده چه کم عام مقبولیت اوشهرت چه درحمان بابا په نصیب شوی دی: هغه دبل یوشاعرهم په نصیب شوی نه دی درحمان بابا دسوی دردمن زړه آهو نه اوسوې ناری دموزونو الفاظو په قالب کښې دکاغذ په پاڼو جمع شوی، اویو لوی دیوان ورنه جوړ شوی دی. وائې چه دده اشعارله ده څخه وروسته دده شاگردانو ټول کړی اومرتب کړی دی. درحمان بابا اشعار په عین ساده والی کښې ډیر مؤثر اوخوندناك دی. اشعارئې عموماً عشقی، اخلاقی، اواجتماعی دی، دی دشاعرۍ په فن کښې دیو مستقل مکتب خاوندی، شعرئې ځانله طرز اوخاص روش لری. دتصوف پاخه افکارئې ځای په ځای څرگند کړی دی، داخلاقو په درس کښې هم لوی استاذ اوصحیح مرشددی، هره معنی په ډیره بلیغه پیرایه کښې بیانوی نوځکه دده شعرپه پښتو کښې اعجاز گڼل کیږی عشق دهرشی مبداء اودجهان دپیدا ښت اساس گڼی :

دا جهان دی خدای له عشقه پیدا کړی — دجمله و مخلوقاتو پلار دی دا

په تصوف کښې وائي: زه دیار مینی په یار پسی شیدا کړم — که خوك ما گڼی زه نه یم واړه دی

داستقامت مثال ښيء :

لکه ونه مستقیم په خپل مکان یم — که خزان را باندی راشی که بهار

اوس درحمان بابا دالهامی شعردایوه ټوټه ولولئ :

که دلدار په دلداری زما قدم زدی — گویا هرقدم په لوری دحرم زدی
ځای لری که بی منته بوسه راکه — کوم کریم په چا منت دخپل کرم زدی
معشوقه مشفقه بویه مهربانه — نه قارون چه په ځان اسم دحاتم زدی
خدای وماوته گلونه دجنت کړه — که داغونه می په زړه باندی دغم زدی
هیڅ مانه دې خوك له مستوستر گونه کا — کوم یومست دی چه قدم په لارې سم زدی
وآسمان ته لاس دعقل نه رسیږی — گنه عشق په عرش کرسی باندی قدم زدی

❀ ❀ ❀

زه داهسی دیوانه او مجنون چا کړم — له رواجه له رسومه بیرون چا کړم
نه پوهیږم چه دا چاری په ما خوك کا — لیونی دخپل ننگا په افسوس چا کړم
کومی سترگی، کوم بانه، کوم ه غمزه دی — دوب شهیدغوندی په خاك و په خون چا کړم
توان توفیق خود فتنو را څخه نه و — په فتنو دتورو ستر گو مفتون چا کړم
رحمان هیڅ له خپله ځانه خبر نه وم — په داهسی رنگ زبون اومحزون چا کړم

رحمان بابا په قام مهمند غوریاخیل دی دپلار نوم ئې عبدالستار و په (۱۰۴۲ھ) کال دپېښور په (بهادر کلی) کښې زیږیدلی، او بیا په (۱۱۱۸ھ) کښې وفات شوی دی، رحمان بابا اوس دپېښور په (هزارخانی) کښې مدفون اودخدای درحمت په ابدی غیږ کښې ویده دی راورتی چه درحمان بابا دلورله خوا اولاده په بهادر کلی کښې اوسی، دپښتو درست شاعران رحمان بابا دپښتو شعر پیشوا گڼی، دی غیب اللسان او شعرئې معجز بولی لکه چه پیر محمد وائی :

که هوڅو وائی نازك شاعران شعر — ولی دوی گڼی معجز درحمان شعر
سوز گداز دمحبت ئی مگر زیات و — چه سوزان ئې هسی شان کړ بیان شعر

ترمصراع ئې جارشه لاړ د مرغلرو　　　　په څه تارئې آویخته کړ یکسان شعر

شمس الدین کاکړوائې :

که څوك ونیسی په لاس میزان دشعر　　　　په عروض کا سنجیده بیان د شعر

و به نه رسی په شعر له رحمانه　　　　که هرڅو کوی هوس افغان د شعر

عبدالله مجزون وایی :

درحمان له شعره بوی د معجزی ځی　　　　مرید ژر کاندی له پیره برابره

یونس وائی :

له رحمانه فیض یاب عبدالرحمان شو　　　　چه له دې سرایه په نوی سرای مهمان شو

دپښتو شعر ئې هسی ناممه یو وړه　　　　چه خبرئې په اشعار ایران توران شه

پردی ډول درحمان بابا په الهامی شاعری ډیر خلق گروهیدلی، او دده ستاینه ئې کړی ده

## ددوهمی دوری پښتانه مؤرخین

په دې دوره کښې ځینی پښتانه مؤرخین هم شته چه چا په پښتو او چا په فارسی ځینی تاریخی کتابونه لیکلی دی نو دلته مونږ غواړو چه په لنډ ډول ددوی بیان وکړو .

شیخ قاسم: داعالم او عارف سړی دشیخ متی له علمی کورنی څخه دی، پلارئې شیخ قدم او مورئې (نیکبخته) نومیده چه دپښتو شاعره وه. شیخ قاسم په (٩٥٦هـ) کال د پېښور په (بډنی) نومی ځای کښې زیږیدلی دی. ده په پېښور او خواوشا ځایو کښې ډیر اعتبار درلود، نو اکبر بادشاه لاهورته وغوښت بیا هلته (جهانگیر) د (چنارگډه) په کلا کښې بندی کړاو هوری په (١٠١٦هـ) کال له دنیا تېر شو چه مزارئې تراوسه مشهور دی: شیخ قاسم یو پښتون مؤلف او مؤرخ دی یو تاریخی کتاب ئې د (تذکرة الاولیا افغان) په نامه لیکلی دی ، مگر دا کتاب کم یافت دی او نه پیدا کیږی .

نعمت الله هروی: دا سړی دخواجه حبیب الله زوی دی چه د هرات له پښتنو څخه و؛ دپټی خزانی په قول اصلا نورزی دی چه د(١٠٠٠هـ) په خواوشا کښې ئې ژوند کاوه ده په (١٠٢٠ هـ) کال دخان جهان لودی په امر دپښتنو په حالاتو کښې یو تاریخ ولیکه چه نوم ئې تاریخ خان جهان یا (مخزن الافغانی)و دا کتاب په فارسی دی او دپښتنو په تاریخ کښې یو خورا مهم کتاب دی د لودیانو او سوریانو او نورو پښتنو پاچاهانو حالات پکښې مفصل راغلی دی. د دې کتاب قلمی نسخې پیدا کیږی. او انگلیسی ترجمه ئې هم ډیر وفیسر ډورن له خوا په (١٨٣٦ ع) په لندن کښې خپره شوی ده، د نعمت الله له دې تاریخی کتابه د پښتو په ادب کی هم ښه استفاده کېدای سی .

هیبت خان کاکړ : هیبت خان هم یو پښتون مؤرخ او لیکوونکی دی. د نعمت الله سره ئې دغه په تاریخ کښې مرسته کړی ده. هیبت خان دخان جهان لودی د دربار یو عالم او ادیب سړی او یو پښتون مؤرخ گڼل کیږی.

شیخ عباس سروانی : دې سړی د(تاریخ شیرشاهی) په نامه دشیرشاه سوری او دده د کورنی په حالاتو کښې یو کتاب لیکلی دی چه ددغی کورنی حالات پکښې له ابتداڅخه دشهزاده سلیم ترمرگه پوری بیان شوی دی. ژبه ئې فارسی ده. نو معلومیږی چه شیخ عباس یو پښتون مؤرخ او فاضل سړی و.

حاجي محمد عارف: دا سړی اصلاً د قندهار و، يو خورا مفصل تاريخ ئې ليکلی دی لمړی ټوټ ئې (مطلع) او دوهم ټوټ ئې (مقطع) نوميږي. دی په هند کښې او سېده چه بيا په (۹۸۵ھ) کښې هلته وو ژل شو. ده په خپل تاريخ کښې د هند د پاچاهانو او د پښتنو د پاچاهی احوال ليکلی دی.

امام الدين: د شيخ کبير زوی او د شيخ قاسم نمسی دی شيخ کبير هم د دې کورنی يو مشهور سړی تير شوی دی، امام الدين د (۱۰۲۰ھ) په اول کښې زيږيدلی دی او د خپلې کورنی د نورو خلقو پشان يو علمی او روحانی سړی و سر بيره پر دې يو پښتون موزخ هم بالله کيږی ځکه چه د پښتنو پر حالاتو ئې د (تاريخ افغانی) پر نامه يو تاريخ ليکلی دی.

کامران خان: په قام سدوزی دی، په (۱۰۳۸ھ) کال ئې د قندهار په شهر صفا کښې يو کتاب و کيښ چه نوم ئې «کليد کامرانی» وه. دا کتاب د محمد هوتك لاس ته ورغلی و او په پټه خزانه کښې ئې ځنې معلومات ورنه اخستی دی. دا تاريخ د پښتنو يو سياسی او ادبی تاريخ و، مگر اوس ئې پته نشته.

حسين خان افغان: په پښتو او فارسی ئې گډ و د په (۱۰۳۲ھ) د (تواريخ افغان) په نامه يو کتاب ليکلی دی. دا کتاب حافظ رحمت خان ليدلی و. (۱)

ابراهيم پيتنی: د شيخ عباس شروانی تاريخ شيرشاهی ئې بشپړ کړی او تمام کړی دی نو په دی لحاظ دی هم يو پښتون مورخ بولو.

ددې دوری ځينې عالمان او شاعران چه آثار ئې نه دی پيدا شوی

مولانا عبدالوهاب: د لسمې پيړی له مشهورو عالمانو او قايدانو څخه دی وائی چه دی د سلطان محمود گډون ملگری و. سلطان محمود د (۱۰۰۰ھ) په حدودو کښې د اباسيند پر غاړو د پښتنو يو ملی مشر و. عبدالوهاب دا شعر په (دواوه) کښې لوی شوی دی. د سلطان گډون له خوا خليفه او يو مشهور پير او عالم و، ډير مريدان ئې لکه اخون چالاك او نور درلودل. اخون درويزه دده په حالاتو کښې ليکي (چه دی يو يوه پياوړی عالم او د خپلې زمانې يو پرهيز گار سړی و) دی په پارسی، عربی، پښتو، هندی ژبو کښې تاليفات لری، کنزالدقايق ئې په فقه کښې منظوم کړی دی مولانا عبدالوهاب د علم د خپرولو د پاره ډير کوششونه کړی دی او يو لوی مجاهد هم و. قبر ئې د پيښور (په اکبر پوره) کښې دی او په اخون پنجو بابا ياديږی.

اخوند چالاك: د مولانا عبدالوهاب ملگری، مريد او پقام خټك و. اخوند چالاك د صافو او شنوارو په مرسته د کونړ په غربی دورو کښې د اسلام د اشاعت د پاره له کفارو سره ډير جنگونه او جهادونه کړی دی، ملامست په خپل کتاب (سلوك الغزات) کښې دده د غزاگانو پوره حال راوړی دی يو ځای کښې وائی:

دا زمونږ اخون هميش بهادر د دين دی چه له مخه ئې تياره تښتی رڼا ځي

اخون چالاك يو مجاهد او عالم سړی و، اخون درويزه ئې هم ذکر کړی دی، وائی چه دی د شاهجان مغولی د لاسه مړ شوی دی او قبر ئې په پېښور کښې دی (۲)

---

(۱) فهرست بلومهارت.
(۲) د بناغلی خوگيانی مقاله د کابل په (۱۵۶) مجله کښې.

مولانا نورمحمد : داپښتون عالم هم دمولانا عبدالوهاب له پیروانو څخه دی، یومجاهد اوغازی سړی و، دده اصلی نوم محمدیونس، اودغه ئې لقبي نوم دی، خزینة الاصفیالیکی : چه دی دیوسف زو یونامی فاضل و، پهپښتنو کښې چه دیومشر دپاره کوم صفات پکار دی هغه ټول په ده کښې موجوددو، په توره اوسخا کښې بی مثله و، دمولانا عبدالوهاب په هدایت ئې داباسیند په کوهستان کښې داسلام اوعلم اشاعت کاوه، دغلته ئې دچلاك په ملگرتیا جهادونه کړی اواسلام ئې خپور کړی دی دی دمولانا عبدالوهاب زوم هم مولانا نورمحمد د هندوکش په غاړو ادرو کښې هم دعلم دخپرولو په مقصد گرځیدلی دی، وایې چه ده پښتو ژبې ته په تدریساتو کښې زیات اعتبارور کړی و اودپښتو ژبې په خدمت کښې یې هم برخه اخستی وه دی په(۱۰۵۹ھ) کښې وفات شوی دی .

مولانا احمدشاه : دمولانا نورمحمدورور اویو عالم سړی و. استوگنه یې پههند کښې وه

پیرسباك، داخون چالاك ورور اودمولانا عبدالوهاب دسلسلې یوعالم اوفاضل سړی و

محمد یوسف : داسړی په قام یو سفزی اویوښه عالم اوفاضل و عبدالرحمن بابا دده له شاگردانو څخه دی، چهله ده څخه یې دینی علوم لوستلی وو په خپله محمدیوسف د مولانا نورمحمد شاگرد او مرید دی (۱)

عبدالله : درونیانو معاصر دی، داخون درویزه په قول دملار کن الدین زوی او دپښتو ژبې شاعرو، مگرد کلام نمونه یې نهده پیداشوی .

الله داد : داسړی قاسم علی افریدی د کریمداد اودرویزه سره یوځای دشاعرانو په ډله کښې ذکر کړیدی، نواحتمال لری چه داخون درویزه په سلسله کښې داخل وی .

میاداد : دی هم دپښتو یومشهور شاعر معلومیږی ځکه چه ډیرو ورستنو شاعرانو یادکړی دی مگردا په یقین نهده ښکاره چه دی څوك ومرزاحنان دشاعرانو په ډله کښې داسی راوړی دی (بل اخون میاداد دعشق پهمیومستو) دمطیع الله په قلمی دیوان کښې دیوغزل دپاسه چالیکلی دی چه داداخون میاداد دشعر عکس دی؟ لهدې نه معلومیږی چه دغه لیکونکی دمیاداد اشعار لیدلی وو

مسری خان : ددې شاعرنوم ملامست په خپل کتاب کښې داسی اخستی دی :

هغه شاعر مسری یې هم ورسره مرکړ - چه درست صافی یې غزودبدلو نو غالبه داده چه داشاعر، په قام صافی اودملامست هممعصرو، نور معلومات یې نشته

## ددې دوری پښتانه پاچاهان

په دې دوره کښې دپښتنو مشهور پاچا شیرشا سوری دی،دده اصل نوم فریدخان او پلار یې حسن نومیده، شیرشاسوری په (۹۴۸ھ) کال مغولی همایون څخه پاچاهی واخسته او په هند کښې یو زبردست پاچاشو.دی یوعادل اومدبرپاچاو په رعیة مهربانه، اودعالمانو اوفاضلانو قدردان وټولو پښتنو ته یې په یوشان کتل اوویل به یې «زما په دربار کښې دقبیلو ذکرمه کوئ، ماته ټول پښتانه یودی (۲) » له ده نه وروسته یې زوی اسلام شاه هم پاچاهی کړیده، دشیرشاه په زمانه کښې پښتانه شاعران لکه شیخ عیسی او نورتیر

---

(۱) دښاغلی خوکیانی آثار . (۲) دآزاد پښتون مجله .

شوي دي ځيني پښتانه مؤرخين لکه شيخ عباس او نور هم په دغه وخت کښې وو په دې دوره کښې نور لوی پادشاهان نه دي تير شوي، بلکه دا دوره عموماً د مغلو د پادشاهۍ په دوره ياديږي چه له بابر څخه شروع شوې او په محمد شاه کورګاني ختمه شوې ده، هو! ځيني واړه اميران او مشران لکه روښان، احداد، عبدالقادر، سلطان ملخی توخی، او دغسې نور ځای په ځای تير شوي دي مګر هغوی په لو پاچاهانو کښې نه حسابيږي.

## د دې دورې ادب ته يوه عمومي کتنه

وايي چه د هرې زمانې ادب د خپل وخت د خيالاتو او افکارو نماينده او ښکاره کوونکی دی، رښتيا ده چه شاعر او يا ليکوونکی هله ښه څه ليکلی شي چه د زمانې له واقعاتو څخه متأثر شي او دغسې ادب چه د زړه تاثر او احساسات ښکاره کړي رښتياني ادب دی د پښتو ادب په اوله دوره کښې په بل شان او بل صورت او په دوهمه دوره کښې يې بل رنګ پيدا کړی دی د دې ادبي تحول او بدلون لوی سبب د زمانې د واقعاتو بدلېدنه ده د مغلو د پاچاهۍ دوره په پښتو ادب کښې يو څرګند تأثير لري که څه هم د مغلو اصلي پاچاهي د چنګيز له وخته يعني د اوومې پيړۍ له ابتدا څخه نښتې ده مګر ادبي تاثير يې د بابر له وخته يعني د لسمې پيړۍ څخه را په دې خوا ښکاره شوی دی بل دوهم سبب چه د دې دورې په ادب کښې ښکاره تاثير لري هغه د سلام د پاک دين وسعت او د مذهبي افکارو غلبه ده له دې وخت څخه پخوا د پښتو ادب يوازې د شعر په خوا کښې زياته برخه لره او د نثر برخه يې کمزورې وه. دا رنګه د موضوع په لحاظ هم شعر محدوديت درلود يوازې عشقي ترانې، ځيني مناجاتونه، جنګي سندرې او د طبعي منظرو صفتونه په کښې موجود وو؛ چه دا د هرې ژبې د شعر لومړۍ برخې دي. د هغه وخت اشعار له پاکو او ساده احساتو څخه ډک او آهنګونه او اوزان يې هم ملي او خوند ور وو. له مادي احساس نه خالي او د معنې په لحاظ لوړ او ممتاز وو او په هره کلمه کښې يې لطافت، خوږ والی قوت او ياکوالی ښکاره ؤ لکه د بيټ بابا مشهور مناجات مګر بيا کوم وخت چه له يوې خوا مذهبي افکارو عموميت وموند يعنې د اسلامي دين رڼا په هر ځای خپره شوه او له بلې خوا د مغلو د غلبې او پاچاهۍ دوره راغله او په هر ځای کښې يو سياسي او ديني بدلون پېښ شو نو پدې اعتبار په پښتو ادب يې هم اثر ولويد، په پښتو شعر کښې مذهبي افکار په زياته اندازه را ننوتل چه د دې دورې اکثر کتابونه له دغه رنګه ډک دي، هر کله چه عربي د مسلمانانو مذهبي او ديني ژبه وه او يو خاص مذهبي قدر يې درلود نو عربي ځيني مذهبي الفاظ او کلمات لکه تصوف، معرفت، سلوک، شريعت او داسې نور هم په پښتو ادب کښې را داخل شول، او ورو ورو د غه رنګ په پښتو کښې زيات شو. بر ته له دې څخه کوم بل مهم بدلون چه د پښتو په شعر کښې راغی هغه دا ؤ چه په دې دوره کښې عربي او فاسي وزنونه هم ډېر شول او د پښتو د ملي خاصو اوزانو ځای يې ونيو. پدغه وخت کښې هر کله چه عربي ژبې ديني نفوذ او فارسي د مغلو په وجه سياسي نفوذ درلود نو يې دې وجه يې د پښتو ادب هم د الفاظو او کلماتو له خوا او هم د اوزانو له خوا د خپل تأثير لاندې راووست په دې دوره کښې په دې لحاظ چه د ليکلو ضرورت له هر حيثه زيات ؤ په پښتو ادب کښې د کميت له خوا پوره تحول راغی يعنې ډېر آثار او کتابونه وليکل شول په نظم او نثر دواړو کښې ذخيره زياته شوه او د پښتو د ادب لمن لويه شوه په دې زياتوالي کښې د پير روښان او اخون درويزه مذهبي اختلافونه لوی برخه لري، ځکه چه دوی به د خپلو افکارو د خپرولو د پاره په خوله او قلم تبليغ کاوه هم به يې خطابې او وعظونه کول او هم به يې کتابونه

او آثار لیدل کیږي مګر په دې دوره کښې د پردو کلمو استعمال څه قدر د پښتو د نظم او نثر اصلي خوږ والی او سلاست ته ضرر رساوه یعنی د کیفیت په لحاظ پښتو ادب څه قدر ضرر من* او نقصان من شو بل هر کله چه په دې دوره کښې د مغلو جنګونه، ظلمونه، ناکردې زیاتې شوې، زړونه دردمن او په غم او درد اخته شول، د جګړو او جنګونو لمن هر ځاې خوره شوه، پښتنو د خپل نوم او ناموس د ساتنې د پاره توري ته لاس ور ته کړ، د پردو مقابلې ته کلک ودریدل او مدافعې ته تیار شول نو د دې ملي حرکت او خوځیدو په وجه په شعر او ادب کښې هم یو حرکت پیدا شو او رزمي او جنګي اشعار له پخوا څخه زیات میدان ته راووتل، پر ته له حماسي اشعارو څخه په دې دوره کښې اخلاقي اجتماعي، دیني او تصوفي اشعار هم له پخوا څخه زیات شوي او ډیر شوي دي. دې دورې ته مونږ د پښتو د نوي نهضت دوره ویلی شو، په دې وخت کښې پښتو د علم او وسعت میدان ته راووته علمي ذخیره ډیره شوه د تصوف او سلوک څخه د پښتو شعر زیاته برخه ومونده د دې دورې د پښتو ادب په ژوندانه او سرمایه دار کولو کښې پیر روښان، اخون درویزه، خوشحال خان ختک او د دوی کورنۍ لوی لاس او ډیر حق لري، د دوی د کوښښونو په وجه ډیر خلق د پښتو د کاروان سره ملګري شول او د لیک او تحریر شعر او شاعرۍ عمومي شوق پیدا شو هر طرف ته د پښتو ناوی پورته شوې او هر چا قلم په لاس واخست، پیر روښان د قافیه دار نثر یا د نیم مصنوعي نظم سبک راو ویست او دده په مکتب مشهور شو چه ډیرو خلقو ئې پیروي وکړه حتی چه اخون درویزه هم ددغه سبک پیرو باله شو، مګر خوشحال خان ختک په شعر او نثر کښې دیو ځانله مکتب او طرز جوړونکی وباله شو، نو لې کورنۍ ئې د پښتو په شعر او ادب کښې نوم وویست او په دې لار کښې ئې ډیر خدمتونه وکړل د روښان او خوشحال خان کورنۍ تقریباً دوه سوه کاله دالې ګولې په میدان کښې په مړانه وچلیدې، پردو ظلمونو او بیګانه لاسونو هیڅکله د دوی د جوش او زړونه مړه نه کړی شول، ظلمونه کلمونه د مغلو والی په مقابل کښې د پښتنو والی بیرغ جګ ولاړ وو، اکثر شاعران دیوه درد په اثر په یوه آواز ګډ شول چا دا درد په زړه کښې وساته او چا په شعر کښې ښکاره کړ حماسي اشعار زیات او د پښتو د شعر لمن نه هر ډول مضمونو څخه ډکه شوه د رحمان بابا غوندې یو فقیر او ملنګ سړی هم د دې وخت د ظلم منظرې ښودلو ته تیار شو لکه چه وائي:

په سبب د ظالمانو حاکمانو      ګور او اور او پېښور درې واړه یو دي

د خوشحال خان په شعر کښې خو دا هنګامه ډیره ګرمه ده، ولې دده خو ټول عمر د مغلو سره په دغرو او جنګ جګړو تېر شوی دی مثلا وائي:

زه غلیم د اورنګ زیب یم      سر په غره په بیابان
هنګامه ده لا په منځ کښې      د مغل او د افغان
پس له بنده دې دا عزم      د خوشحال د خاطر جزم
یا نیولي مخ مکي ته      یا مغلو سره رزم

بل ځای کښې وائي:

ته په اصل پښتنه د کوهستان ئې      دا د ظلم خوی دې زده کړ له مغلو

په دې دوره کښې نثر ته هم توجه وشوه او نظم او نثر دواړه اوږه پر اوږه پر مخ ولاړل، دا رنګه له عربي او فارسي څخه ترجمې هم شروع شوې او تاریخي کتابونو ته هم د خلقو مخه شوه. د دې دورې په شاعرۍ کښې د رحمان بابا د شعر مکتب هم یو لوړ ادبي

مکتب دی چه پوره شهرت لری، او شعر ئې په روحانی او الهامی شعر یادیږی. ددی دوری د نثر مشهور کتابونه دادی :

د پیرروښان خیرالبیان - داخون درویزه مخزن الاسلام - داخون قاسم فواید الشریعه - دخوشحال خان هدایه - په ترجمه کښې یو دعبدالقادر گلدسته او بل دخوشحال خان عیار دانش دی . دنظم کتابونه یې ورسته دولدی - دمیرمن نیکبختی ارشادالفقرا - دملاالف بحرالیمان او نصیحت نامه - دارزانی دیوان - دمیرزاخان دیوان - ددولت خان دیوان - دامیر تجوید - دملامست سلوك الغزات - دخالق داد شرایط واحکام ایمان - د بابو جان دیوان - دخوشحال خان دیوان - د آدم او درخانی قصه - خسرو شیرین - دسکندر خان دیوان اومهرو مشتری - دخواجه محمد دیوان - درحمان بابا دیوان او څینې نور - ددې دورې تاریخی کتابونه دادی ؛

بستان الاولیا - تحفه صالح - تذکرة الاولیاء افغان - مخزن افغانی - تاریخ افغانی - کلید کامرانی - تاریخ شیرشاهی - مطلع ومقطع - تواریخ افغان او نور.

## دریمه دوره له ۱۱۰۰ ه ۱۶۸۷ ع څخه تر ۲۵۰ ه ۱۸۳۰ ع پوری

## د هوتکو او سدوزو زمانه

مونږ په هره دوره کښې لومړی د شاعرانو او لیکوالو بیان کوو، بیا دهغې دورې پر شعر او ادب او نورو شیانو یو عمومی نظر اچوو او پدې شان خپله تبصره جاری ساتو. نو په دې اعتبار دادی اوس ددې دوری لیکوال، شاعران، مؤرخین، او په پښتو کښی ددوی آثار او خدمتونه بیانول او ښرگندول غواړو .

## د دریمې دوری شاعران او لیکوال

عبدالحمید مومند: ددولسمې پیړۍ داولې برخې خورا مشهور نومیالی ادیب او شاعر دی چه ملاهم ؤ او طالبانو ته به ئې تدریس کاوه .

حمید په مقام مهمند او دپېښور د (ماشوخیلو) د کلي ؤ . دحمید دشاعرۍ او شهرت زمانه د (۱۱۳۰ ه) حدود دی . دده دی بیت څخه معلومیږی چه دمحمد شاه مغولی پاچا همعصر و :

چه د بلکلیو د درگاه گدایی مومی      هی توبه د محمد شاه له سلطنته

حمید په پښتو شعر کښې دیو لوړ مقام څښتن، دی ، د نازکخیالۍ او مضمون آفرینۍ استاذ باله کیږی . داستعاراتو ، تشبیهاتو او ادبی تلازماتو په بیان کښې هم پوره اقتدار لری او دخیال ذره بین ئې ډېر تېز او قوی دی حمید په پښتو کښې درحمان بابا او خوشحال خان په صف کښې ددریدو حق لری ، یعنی د پښتو د شعر استاذ او دیو نوی سبك او طرز مؤسس بلل کیږی . وایې چه دحمید دشعر سبك دفارسی دسبك خواته نژدی دی نو په دې اعتبار د پښتو دشعر کره کوونکی ده ته د پښتو بیدل وایی .

حمید په ابتکار او مضمون آفرینۍ کښې لوی لاس لری، دده شاعری داستاذی - او آزاد تخیل شاعری ده ، حمید که څه هم په عام شهرت او عام مقبولیت کښې رحمان بابا ته نه رسیږی ، مګر ادبی شهرت ئې تر هغه زیات ښکاری .

دپښتو وروستنی شاعران حمید ته دمو شگاف لقب ور کوی لکه چه وایی :

بل حمید مو شگاف دخیال په شعر — څه به وایم ناسفته در ئې پیل (مرزا حنان)

پس له دویه موشگاف عبدالحمید دی — چه ئې ووی ښه نازك نكته دان شعر (پیر محمد)

دحمید موشگاف وخیال ته هوش کړه — گوندی شې دده په شعر تېز نظر

❁ ❁ ❁

(عبدالله محزون)

قاضی میر احمد شاه رضوانی ورته دآسمان دستور وپیونکی وایی . بیلیو مشهو ر مستشرق انگریز وایی «چه حمید دتوصیف وړ حسیات لری ، او د کلام په پوخو کښی دپښتو سعدی دی»

دحمید بابا اشعار که هم دخیال پروری دبستان ته منسوب دی ، مگر ادبی صدا قت او شعری حقیقت ئې په لوړه اندازه په اشعارو کښې لیدل کېږی لکه چه وایی :

چه ریبی می بې صرفی دزړه گی ولی — کېږی وروځی دی «دیار که لوره ی دا

دائې ښاخ له گل سره په تلوار پربکړ — که له زړه سره می تر کولړمون و کبېنی

دازما له غمه شین زړه پکښې خیال دیار دښندو — هسی رنگ زیب وزینت کا لکه می په شنه پیاله کښې

❁ ❁ ❁

دحمید مکتب په پښتو کښې دسوز و گداز مکتب دی . دزړه سوی خوږ در داوسوی ناری ورسره هروخت ملگری وی . داوجه ده چه دحمید دزړه ددفترلومړی پانه دسوز او گدازیه غوښتنه شروع کیږی اووایی :

الهی د محبت سوز و گداز را — په دا اور کښې دستی سمندر سا ز را

په بل ځای کښې ددومره سوز غوښتنه کوی چه لکه دپتنگ په یو ساعت کښې سره لمبه شی :

چه دی نوم په غوږ زوواورم سره لمبه شم — هومره سوز را کښې پیدا کړی زمار به

دحمید په دی استادانه مکتب کښې ډېر زبردست شاعران داخل شوی او پالل شوی دی او ځان دده شاگردان او پیروان کښې لکه مرزا حنان ، قلندر ، عبدالله او نور .

مرزا حنان وایی :

دحمید دخوش نظمی په زراعت کښې — داحنان یې دی دشعر خوشه چین

حمید په شعر او شاعری کښې ځانته لاره لری ، دده په عقیده شعر موشگافی او دزره سنجی ده ، او دا مقام دومره جگ بولی چه هر څوك ورته نشی ختلی لکه چه وایی :

نه دی کار دهرنا اهله بوالهوس — چه قدم زدی ددې ناوې په جوس (۱)

څو دوینو د دریاب مرجو نه نشی — مشرف به ددې درپه رنا نشی

حمید په پښتو کښې دسوزناکو اشعارو خاوند دی ، دده اشعار دده دسوی زړه آواز او ددردمن زړه چغې دی ، چه دده دزړه په وینو رنگ اولړلی دشعر په ښایسته لباس کښې میدان ته راوتلی دی لکه چه وایی :

شعر نه دی داخوناب دزخمی زړه دی — یاوتلی دستی دم له خولی دمړه دی

یا نغمه دنیم بسمل مرغه دخولې ده — یا مجنون ته معمی ښکلی لیلې ده

یا دوینو ابا سیند وهلی موج دی — یا له ښاره دحیرت وتلی فوج دی

(۱) قصر ، مانۍ

لکن دحمید په کلام کښې دخوشحال اورحمان غوندې رواني اوسادګي نه لیدل کیږي، ځکه چه دده دتخیل لوړوالی څه قدر دده په کلام کښې سختي او پیچیده ګي پیدا کړې ده، دده دیوان زیاتره عشقي او تصوفي دی، او ځینې اخلاقي او اجتماعي اشعارهم لري لکه چه وایي

که څوك نه پوهوي سترګې په حرامو　　　شي په پښو کښې پېړ ندې پردې پښه

بل ځای ددرس او مکتب په باب وایي :

ونیو مشه هغه زویه په خواپوري　　　چه یې نه نیولی درس وي نه مکتب

په غوجل کښې باري خراو کچرشه دی　　　نه په خونه کښې جاهل او بې طلب

په زده مهر په خوله قهرزوي ته بویه　　　څه ښه وایي چرته دب هلته ادب

حمید ځان درښتینی عشق خاوند بولي :

د حمید رښتینی عشقه　　　په هر علم کښې استاده

بیا په همدې اساس دمیني هنګامه له حسن څخه زیاته ګڼي نو وایي :

هنګامه دمینې زیاته ده له حسنه　　　دمجنون ددر ګداشه لیلی مشه

دعشق لیوني دده په نزد ډېر لوړ مقام لري، نو ددوی دځنځیرونو په شرنګهار کښې څومره خوندوینې

یادښکلیو دپالولیو شرنګهار دی　　　یا دعشق دلیونیو د ځنځیر

دحمید آثار : دحمید آثار چه مونږ ته معلوم دي، یو دده دیوان دی چه په ادبي جرګو کښې دحمید په «درومرجان» یادیږي ، بل اثر یې د«شاګداقصه» ده، او بل اثر یې دفارسي «نیرنګ عشق» پښتو ترجمه ده ، دادواړه کتابونه یې په پښتو مثنوی ترجمه کړي دي او دخپلې طبعي زوراو اقتدار یې پکښې ښه څرګند کړی دی ، نو ځکه وایي :

ما چه وپیل دادر په باریکی　　　غوزو ور کړې یوله بل مبارکی

دحمید ژوند تر (١٣٣٧ﻫ) پورې څرګند دی ځکه چه په دغه وخت کښې د شاګداقصه ترجمه کړې ده، مستر راورتي دده د وفات وخت(١٧٣٢ع - ١١٤٥ﻫ) ښودلی دی ، اوس دده ددیوان څخه دادوه پټې ولولې :

## عشق

آهو چشمو چه یې زړه په افسون وکېښ　　　هغو سر له و داني په هامون وکیښ

انتظار یې دنرګس ګونه کړه زیړه　　　سروي سرپسی له باغه بیرون وکیښ

دایې ښاخ له ګل سره په تلوار پریکړ　　　که له زړه سره مې تر کولړمون وکیښ

بیهوده صبح دم بولي و ګړي　　　دغه آه زما له غمه ګردون وکیښ

چه یې وکیښ خښ تو بري دیار له لاسه　　　ساده دل دامید زړی زرغون وکیښ

دایه اور باندې زړاد کباب خیژي　　　که فریاد دیار له غمه محزون وکیښ

و آسمان ته به دعقل ستنې کېږدي　　　که حمید دغم له سره زنګون وکیښ

## نصیحت

ځان ته ښه وایي ښه نکړي　　　هغه څه وایي دا څه کړي

له ورېشو غنم غواړي　　　ښه به هله شي که ښه خړي

حق بیني ته لکه سو یه　　　غټې سترګې ځان ویده کړه

کړي خار په هغه لار کښې — چه په هره ساړي تله کړي
هغه دم په تار ناشي — چه دبل په کور تیاره کړي
نه دي شرم شي نه عیب — که هرڅو دنه کړو کړه کړي
دا یو ځان دنفس دپاره — کله سپي کله لیوه کړي
په بد خوی به دچا څه کړي — په خپل ځان به شندي و کړي
خود په خود لویږي کوهي ته — له حمیده څه ما نه کړي

محمدیونس: دپښتو ژبي یو غوره شاعر اودرحمان بابا شاګردو، په شعر کښې یې درحمان بابا داشعارو پشان جوش اوروانی لیدل کیږي، محمدیونس په قام موسی خیل دی، دی په (خیبر) کښې اوسیده، اوپه (۱۱۳۰ ه) کښې یو دیرش کلن ځلمی و، وایی (۱) چه دی یو مېلمه دوست سړی و، اودشاعرانو اوعالمانو قدراوعزت به یې کاوه، یونس دپښتو اشعارو یو مکمل دیوان لري (۲) پادري هیوز انګریز په خپل کتاب «کلید افغانی» کښې دده له اشعارو څخه انتخابات کړي دي.

یونس یو عالم اوپوه سړی واو په عربي علومو کښې یې مهارت درلود. دیونس اشعار به بدیعي صنعتونه لري لکه دا:

توري زلفي، شنه خالونه، سره رخسار — شنه توتیان دي، سره ګلونه، تورښامار
په یو خال چه یو په لس شي عجب نه دي — که په دوه خاله شمېر هشي لس په صد

دده په شعر کښې ځیني پښتني احساسات هم شته لکه چه وایي:

دمیدان په ورځ چه تېښته کاله جنګه — پاتي هیڅ نشي باقي له نام و ننګه
له میدان تېښته کار دي دزنانو — مرد به نه تښتي له غشي له تفنګه
چه دتورو په بریښنایي وارخطا شي — موری مه وای په هغه غولا تي لنګه

په اجتماعي خوا کښې یې دابیت یو قیمتي بیت دی:

کم همت چه جمعیت دخاطر بیا مونډ — نوریې غم دورور عزیز په پریشانی څه

عیسی اخونزاده: دقندهار دکاکړو له پښتې څخه یو مشهور عالم او ادیب سړی و مرزاحنان دده اشعار دآفرین وړ بولي لکه چه وایي:

دعیسی اخونزاده شعر که واوري — آفرین به بانډي وایي تل ترتل

وایي (۳) چه ده داشعارو یو کامل دیوان درلود دده دژوند زمانه په یقین معلومه نه ده، مګر غالباً ددولسمي پېړي شاعر ګڼل کېږي. دابیت دده دی:

ویر دمیني می تاخون په زړګي کېښود — نه می وینی ی ژړ دابي واو یلا څوک

مسعود: دعبدالله زوی دی، په پښتو کښې لیکونکی اوشاعرو. دده یوادبي اثر د(آدمخان او درخو قصه) ده، چه په پښتو نثریې په حقیقي ډول لیکلی ده، په دي قصه کښې یې ځای

---

(۱) پټه خزانه (۲) دیونس ددیوان یوه ښکلې قلمي نسخه چه په (۱۱۷۶ ه) کال لیکل شوی ده، ددارالتحریر شاهي په کتابخانه کښې شته،

(۳) پښتانه شعرا اول ټوک.

پهځای خپل اشعارهم راوړی دی. دمسعود دژوندانه وخت ښهمعلوم نهدی مګردا ښکاره ده چه دآدم خان تروخت (١٠٠٠ هـ) څخهوروسته و. غالبه داده چهددولسمی پېړۍ داولی برخی شاعردی. مشعود پهخپلههم لکهچهدمینې پهاورسوی اوجلېل و، نوځکه یې ښهعاشقانهجذبات بیان کړیدی. ددرخانی پهباره کښې وایي:

چهسینه یې دآدم پهاور کباب شوه
دحجاب میرمن درخانه بې حجاب شوه

چه آدم درباب غوزوربانډی تاوکړ
وچې شونډی په نغمه لکه رباب شوه

دآدم شرابو هسې مستي ورکړه
خلقه یې ونظر وته سراب شوه

درازخان موسیزی: (١)داسړی دپښتوله پخوانو شاعرانو څخهدی، مګر دژوندانه زمانه یې پوره نهدهمعلومه، اواشعاریې همډېر نهدی لیدل شوی. دابیتیې ولولیء:

یوسف رویه عنبر مویه ملک خویه
په کتنه ایه مار نسخ واخلهطبیبه

قلندر: پهقام اپریدی دیچهدباړی اوجمرود درود پهغاړو اوسېده، قلندر دحمیدبابا همزمانه اوده دادی مکتب شاګردو، لکه چهوایی:

فضل دسبحان په قلندر دشعر وشو
داوازه سبب فصیح بلیغ ودما شو(٢)

قلندر پهپښتو کښې یوډېرګ دیوان لری (٣) چهدرست ددهدسویو آهونو اوپرسوزو نغموڅخه ډک دی. هغهسوز اوګداز چهدحمیدبابا پهشاعرۍ کښې لیدل کیږی، هغهدقلندر دشاعرۍ اوژوندروح دی. دی عشق اومینهخپل مسلک ګڼی اوپه دې لار کښې له هرڅانه وړاندی دی دقلندر لهاشعارو څخهمعلومیږی چه(میرا) ئې معشوق اویاېې پیرو.

دقلندر اومیرا دعشق پهباب کښې یوقصههم مشهوره دهچهددی دوومینو دعشق حالات پکښې بیانیږی. داقصه ډېره سوزناکه اوله ارمانه ډکهده دقلندر ټول عمر پهبېلتون کښې تېرشوی دی هغهاری یې چهپهدغهوخت کښې کړیدی، ډېری دردناکی اوژړونکی دی قلندر یوطبیعی شاعردی. حقیقتاً لهپاکو عشقی احساساتو څخه ترجمانی کوی. دقلندر ویناډده رشتیانی مینی خوږه کړیده. دایوڅو بیتونه یې ولولیء:

نشی څوک ساتلی سرهبځری په ګریوان کښې
ومی سوه پهآه سره دصبر درمند ونه

کهاور دی اوردی بېلتون خواوردی
زه قلندر یم پکښې مې کوردی

داور پهڅو نګک به دچار ضا شی
رضا می نه ده را باندی زوردی

وایی چهقلندر په(سوات) کښې وفات شوی دی، اوهلته یې یوه غونډۍ ښخ دی. مګر دوفات تاریخ یې معلوم نهدی. دقلندر اومیرا دمینې قصه پهادیبانو کښې همشهوره ده لکه دعلیخان خټک چهوایی:

قلندر سوات ته شړي له ارته هنده
څومره ډېرشوی دمیرا دحسن نازه

غلام محمد: دشرینخان زوی اوپهقام ګیګیانی و چه، دپېښور په(دواوه) کښې اوسېده دی ددولسمی پېړۍ داولووختو شاعردی. پهپښتو ئې ځینی کتابونه لکه جنګنامه اود «والضحی منظوم تفسیر» لیکلی دی. دارنګک (معراجنامه) ئې هم لهفارسی څخه په(١١٥ هـ) کال پهپښتو نظم ترجمه کړیده اشعارئې سادهاوعموماً دمثنوی پهډول دی. پهاول جلد پښتانه شعرا

---

(١) پښتانه شعرا اول ټوک.
(٢) ماشوخیل دحمید کلی دی.
(٣) یوه قیمتی نسخهیې مادښاغلی عبدالواحدخان سره لیدلی ده.

کښې ئې د کلام نمونه راغلېده :(١)

**بای خان:** د(١١٠٠ھ) دوختو یو پښتون شاعردی. راورټی انګریز لیکی :

«چه دی دښیرو، اود مولانا جامی لیلی اومجنون ئې په پښتو نظم اړولی دی» د اکتاب اوس نه پیدا کیږی مګر دغه مستشرق ئې دایو بیت دخپل ګرامر په مقدمه کښې راوړی دی :

لهدې خپلی بدی برخې چاته ژاړم په چاداد کړم

**حمید ګل:** درحمان بابا خوریی دی، پېښورته نزدې په(پلوسی) کښې اوسېده.

ده دژوندانه زمانه د(١١٠٠ھ )څخه راوروسته ټاکلای شو. حمید ګل یوملی شاعر دی، په ملی لهجه ئې ښې بدلی ویلی دی. دیـــوان ئې راتـه معلوم نه دی. له یوې بدلې څخه ئې دا یو بند و لولی :

یا ټیك ستا پر جبین دی        یا ستوری ګه د سبا ده
یا جام دچین ما چین دی        یا سپینه خو له زیبا ده
یـا عـطـر د ګـلا بـو        یا ستا د مخ خو اې دی
یا تو ری د فولا د و        یـا ستر ګی د لیلی دی
یا کیف دی د شرا بو        یا ښـك دښـډـالی دی
یا هجر سختر ین دی        یا تبه یـا و بـا ده

نوغالبه داده چه همدا غلام محمد به یادوی.

**فیاض :** دی دهند دمغولی حکومت په دوره کښې تېر شوی دی، وایی چه یو ګرزند سړی وو، او ښه ساز به ئې هم کاوه. ده د(بهرام او ګـل انـدامـی قصه) په پښتو نظم کړی ده. د اقصه ځانله هم چاپ شوی ده، او پادری هیوز په (کـلید افغانی) کښې هم نشر کړې ده. دفیاض له شعره معلومیږی چه دی دخوږی اوروانی طبعې څښتن وو، په دې دوره کښې دی لو مـړی سړی دی چه دداستان او منظومو افسانو سلسله ئې نښلولې ده. دغه قصه ئې دقصیدو پر ډول ویلی ده، چه یو څو بیتونه ئې دادی :

یوساعت سره خوشحاله خندېدلې        بیائې دا خبری منځ ته وا چو لې
سر آسیاوې ګل اندامی بهرام سوزی        په ګریوان باندی ئې اوښی بهېدلی
شپه او ورځ ئې هی فراق دریسی زور شو        چه دې زلفی په سپین مخ دی غو ړېدلی
دتصویر په یو نظر په تا مین شو        چه دې پر یکړی د بهرام دزړ ګی ولی
بهرام داوې ته غوږ کېده ګل اندامی        دی جواب غواړی له تانه دچین ګـلی
ګل اندامی وې ته پلار زما قبول کړه        د بهرا م خبر ی کل د ی ما منلی

دبهرام او ګل اندامی دواده جوړېدو نه وروسته :

دغه پسه دبهرام واده ئې جو ړ کړ        رنـګـارنـګ جوړی زرینی رغېدلی
ګل اندام ئې کړه داخله په حرم کښې        دسرو ټیك ئې په جبین شغلی و هلی
چه پېزوان ئې په سروشونډو باندې سور کړ        خلقی ئې بې ګـنـا هـه قـتـلـو لـې
څلو ښت ورځی ئې واده کـا وه یارانو        هم بیشانه تو پخانی به خلا صید لی
بیائې نیت دتلو دروم و کړ فیا ضه        دبهرا م لښکر ی کل سنبالېد لی

(١) حمیدوایی چه مادشاه ګداقصه دآخونزاده غلام محمد په باعثیا په پښتو کړی ده، نوغالبه داده چه همدا غلام محمد به یادوی.

# دهوتکو د کورنۍ او ددوی ددربار شاعران

شاه حسین : دحاجي میرویس خان زوی دی ، په (۱۱۱٤ هـ) کال د کلات په (سیوري) کښې زېږېدلی دی . عربي علوم ئې دملا یار محمد هوتک څخه ویلي دی .



شاه حسین هوتک

شاه حسین یو علم پالونکی او پښتو روزونکی پاچا وو ، ډېر عالمان او شاعران به ئې په دربار کښې موجود وو او ددوی پالنه او روزنه به ئې کوله . دی د پښتو شاعر او ادیب وو او په فارسي کښې به ئې هم اشعار ویل . محمد هوتک په ( پټه خزانه ) کښې لیکلي دي .

چه شاه حسین د ښې وینا خاوند او د پښتو د شعر ډېر شوقمن دی ، او یو دیوان ئې مرتب شوی دی د شاه حسین دیوه بدله له پټې خزانې څخه را نقل کوو :

بېلتانه دې دغمو په چپاو چور کړم
په نیازو کښې دهجران ئې له تا دور کړم
دفراق پړی می پر یوت و مری ته
په جهان کښې ئې رسوا لکه منصور کړم
په وصال دې هم ناښاد یمه دلبرې
د بېلتون فکر په زړه کښې ناصبور کړم
د بانو غشي مې وخوړ په ځګر کښې
غمازانو په غمزو غمزو مجهور کړم
خلق یاد زما ، دعشق په لیونو کا
زه حسین محبت هسې مشهور کړم

شاه حسین په ملي لهجه او طرز هم ځیني بدلي ویلي دي . دیوه بدلې سر ئې چه په « پښتانه شعرا » کښې راغلی دی دادی :

نن دې اور بل په سپین تندي باندې راخور کړ
بل دې په ما اور کړ

داؤدخان : دقادرخان زوی دی ، دقندهار په ( کوکران ) کښې ئې استوګنه کوله . دی دحاجي میرویس خان سره دوطن د آزادۍ په جګړو کښې ملګری او دهغه سپه سالار وو . داؤدخان ځای په ځای ډېر ګرزېدلی وو ، او له هرځای څخه ئې د پښتو شاعرانو احوال راغونډ کړي وو ، داذوق ئې تر هرڅه زیات دقدر وړ دی . دی یو عالم او پوه سړی وو ، ښه طبعه ئې لرله او کله کله به ئې اشعار ویل ، دایوه رباعي ئې ولولئ :

چه دڅپا په زړه کښې اوردمیني بل شي
په اور بل ئې لمبې ګډې حال ئې بل شي
اور د میني کله مري دزړه له میني
داور بل مینه کښه تل د زړه په تل شي

داؤدخان بیا په (۱۱۳۶ه) کال وفات او په کوکران کښې ښخ شو.

بابو جان بابی: د کرم خان زوی دی، چه په (التغر) کښې اوسېده. دی هم د حاجی میرویس له ملګرو او کاردارانو څخه وو، او د ده سره د قندهار د آزادۍ په جګړو کښې شریک وو، دا مېړه عسکر د پښتو شاعر هم دی. په (۱۱۲۹ه) کال ئې د (شها او ګلان) قصه د قصص العاشقین په نامه په پښتو مثنوی نظم کړه چه یو څو بیته ئې دادی:

### عشق

عشق یو هسی تور یالی دی	چه په هر ځای ئې بری دی
د عشق اورهسی سوزان دی	چه سوځلی ئې جهان دی
زړه بې عشقه کله زړه دی	چه بې عشقه زړه دمړه دی

ملا پیر محمد هوتک: د ملا سرور آخوندزوی او د حاجی میرویس ملګری وو، چه بیا د شاه محمود سره (اصفهان) ته ولاړ، او هلته په «پیر افغان» مشهور شو. د ده دوه کتابونه لیکل دی، یو (افضل الطرایق) د اخلاقو په علم کښې، او بل (الفرایض فی رد الروافض) دی.

محمد هوتک په پټه خزانه کښې، له «افضل الطرایق» څخه یو منظوم حکایت رانقل کړی دی چه یو څو بیتونه ئې دادی:

شیخ متی چه خلیلی وو	دی له آره لوی ولی وو
یوه ورځ روان په لار وو	لوی څښتن ته په استغفار وو
په دې لار دې تېزی ګټی	لاری مځکی وې پرې پټی
ډېری شپې راغی رویدار	چه ئې صافه کړه له لار
یو دهقان به آبیاری کړه	شپه په شپه به ئې خواری کړه
ده به لید په توره شپه	شیخ متی په زیار اخته
له راحته به بېزار وو	تل له شپه به هم بیدار وو
یوه شپه را تېر ملیار شو	شیخ متی ته په ګفتار شو
ای د خدای رویداره څه کړې	دومره زور زحمت پرڅه کړې
ته بیدار ئې د ولیانو	ته قدوه د صلحانو
په شپو شپو ئې ته په خواب	په زحمت په اضطراب
پاکوې د لاری ګټې	په دې خاورو څه دې ګټې؟
داسې ووی شیخ متې	د مولا په عشق پټې
چه خدمت د خلق الله	یو ګړی په یوه ساه
تر هر څه بهتر دی وروره	زده کړه دا خبره ګوره

ملایارمحمد هوتک: یولوی عالم دپښتوادیب، اودشاه حسین پاچااستادوو. محمد هوتک وایی:
چه‌شاه‌حسین به‌چه اشعار جوړ کړل نواستاد العلماء ملایارمحمد ته به‌ئې ولوستل ، چه دی
ئې صحیح او کره کړي. ملایارمحمد په‌فقه کښې د «مسایل ارکان خمسه» په نامه یو کتاب
لیکلی دی.

سیدال‌خان ناصر: په‌قام باړی زی ناصردی. پلارئې ابدال‌خان نومیده، چه‌د «وازی خوا»
په (ډیله) کښې اوسیده. سیدال‌خان لومړی دحاجی میرویس‌او بیا دشاه محمود ملګری او
سپه‌سالارؤ دقندهار دآزادۍ په‌جګړو کښې‌یې ښې توری وهلی دي، اوپه تو لو جنګو نو
کښې فاتح‌اوغالب‌ؤ. په‌خزانه لیکی چه‌دی یو عالم‌ادیب اودپښتو ژبې شاعردی هغه و خت
چه‌په جنګو کښې مصروف نه‌ؤنو اشعاریې ویل‌اوعشقی سندرې‌یې کښلې. داځو بیتونه
دده دبدلی دی :

| | |
|---|---|
| یار ماله هسی ګران‌شو | راته‌ږ ترټول جهان شو |
| نور نه وینم په ستر ګو | جهان‌ټول‌راته‌جانان شو |
| دوې‌زلفې‌دی‌اوږدی کړی | پرمخ دی راخپرې کړی |

سرې اشرفۍ دی پرتندی باندی‌سپرې کړې ګرزې‌په‌باغ کښې‌په ګلونو کښې نخرې کړی

| | |
|---|---|
| په اور دې و سوم یاره | راته‌اور تازه بوستان شو |
| شبنم پر ګلو ښکاری | زمااوښکی داری داری |

خوناب ځی ستاله‌غمه زماپه‌مخ‌کی لاری لاری تمامه شپه کرم تېره په ژړاپه ناری ناری

| | |
|---|---|
| ښکاره شوم‌چه‌مجنون‌یم | لیونتوب‌می‌اوس عیان‌شو |
| مین په لو یو غر و ځی | سرتور په نیمو شپو ځی |

ووزی له‌وطنه وطن پرېږدی‌په چولو ځی فریاد وناری و کا په نارو په غلبلو ځی

| | |
|---|---|
| وصال‌یې نصیب نشو | ګوره‌زړه‌دک په‌ارمان‌شو |
| بوستان ښکلی زیبادی | رنګین په اوښکو زمادی |

دزړه پرهار ګلګون دی‌چه‌بلبل په‌تماشادی په‌مینه‌می‌زړه وچاوده وایی په خندادی

| | |
|---|---|
| نتلی دې بیلتو ن یم | زه سیدال‌دامی بیان شو |

وایی چه‌دسیدال‌خان قبرد کهدامن په (شکردره) کښې‌دی، لواولاده یې‌اوس هم‌دغلته شته.

ملانورمحمد غلجی: پلاریې‌ملایارمحمد نومیده. محمدهوتک لیکی: «چه‌دی‌په‌عمر یوخ
سړی یعنی اتیا کلن دی. د پنځه کاله په‌قند ها رکښې دحاجی میرخان د کچنو بخو نو
استاذؤبیاپه (پنجوائی) کښې‌اوسیده، اوهلته‌یې دشرعی‌علومو تدریس کاوه» ده دشاحسین
په‌نامه یو کتاب لیکلی دی چه نافع المسلمین (۱) نومیږی. دا کتاب یې داخون درویزه
پرسبک یعنی قافیه‌دار نثر کښلی دی. مطالب یې‌ټول دینی دی.
ځینې کامل نظمونه هم‌لري لکه دا :

(۱) یوه قلمی نسخه یې په پښتو ټولنه کښې شته.

پههر وقت له مسلمانانو دلداري کړه     په دريمه شپه کښې دېره بيداري کړه
هم پر خپل صورت وژاړه هم زاري کړه     داخپل ځان لکه حباب ترې بېزاري کړه

---

ملامحمد يونس توخي : دشاه حسين ددربار يومدرس عالم ؤ خلقو ته به يې تدريس کاوه

په پښتو کښې يې د«جامع فرايض» په نامه يو کتاب تاليف کړی دی .

ملازعفران ترکی : دشاه حسين ددربار يومشر اولوی فاضل اوعالم ؤ محمد هوتك

وايي چه دی په حکمت ، طب اوریاضی کښې استاددی. په طب کښې يې «گلدسته زعفرانی» نومی کتاب جوړ کړی دی . دده يوه توته شعر په (پټه خزانه) کښې شته ، چه دشاه حسين په حضوريې دزوب او دشال دفتحې په زيرې کښې ووايه ، او هغه بيا زعفرانی شال ورکه هغه قطعه داده :

دحسين بادشاه دبخت ننداره گوریء     چه ئې فتح په لښکرو زوب و شال کا
چه دازيری يې راوړی دی حضور ته     نوزعفران انعام په سرزعفرانی شال کا

---

محمد گل مسعود : په قام مسعود دی او په پېښور کښې اوسيده ، پټه خزانه ليکی چه دی

يو يوخ شاعر ؤ او هر کله به ئې بدلی ويلی ، دابدله يې په پټه خزانه کښې راغلې ده :

چه مې جانان په نيمه شپه کښې رانه بېل شو     اور را باندی بل شو
چه رانه لاړې ، نو دی غم راسره مل شو     اور را باندی بل شو

---

ښکلی ليلی له ما نه لاړی زه نسکور يمه     سوی په اور يمه
د بېلتانه سوراړ کښې ورك مرض مې جل شو     اور را باندی بل شو

---

رب دی ښائست در پوری اور کازه دې سکور کړمه     وريت دی په اور کړمه
د اسپې رقيب دستا په ورد مينې غل شو     اور را باندی بل شو

---

راشه دخدای دپاره غور کړه محمد گل ژاړی     تا ته تل تل ژاړی
دا ستا دعشق په واويلا کښې لکه نل شو     اورراباندی بل شو

---

ملامحمد صديق پوپلزی : ديارمحمدزوی او د(ارغسان) اوسيدونکی ؤ محمدهوتك

وايي «چه يوعشقی ځوان دی ، اوزړه يې له لاسه ايستلی ، پخپل محبوب پسې ژاړی دردمن زړه لری . دمينې په اورسوی دی ، سوزناکی بدلی لولی . کله چه دردمندانو په دله کښې کښېنی مجلس ژړوی ، اوغمجن زړونه پخپلو نارو غلبلو سوځی .

زمانه دده پرځوانې افسوس نه کاو عشق يې جنون ته رسيدلی دی بالبداهه اشعار وايي او دزړه ددرد سوده په کوی : دابدله يې ولولیء :

لکه بلبل چه بې له گله بل ارمان نه لری     هسی بې ياره بله هيله عاشقان نه لری

---

چه ژړا کاندم بې له ياره بل مطلب نه لرم     چه هسی سوريمه په ويښو بل سبب نلرم
بې ياره نورشه نه غواړمه نور مطلب نلرم     چه څوك مين شی بې له ياره بل ارمان نلرم

---

ترتا چه ځان قربانومه ای نياز منه ياره     تل دی غمونه گلومه ای نياز منه ياره

لهستر کو اوښی تو یومه‌ای نیاز منه یاره    زړه‌می بې تا په یوساعت دمه‌او توان نلري

که ته‌می وژنی که پرینږدی اختیارخو تا لره‌دی    غم‌دې پیدا نه‌دی بل‌چا لره‌خاص‌ما لره‌دی
زړه‌له راغلی‌دی مېلمه‌سبا بیګاه لره‌دی    دزړه‌له کوره‌څخه تګ په‌هیڅ یوشان نلري



الله‌یار افریدی : دکاکړستان په (بوزی) نومی ځای کښې اوسیده. دپښتوژبې شاعرؤ اودشعر دیوان یې درلود . محمدهوتك وايي‌چه کلام یې دښاتوپه شان خوږدی ، یوغزل یې په پټه‌خزانه کښې راغلی‌دی یوبیت ئې دادی :

اوردی دمینې ما ته بل کړ سینې‌ورېت دی کړمه    ستا دوصال په‌اوبوسوړسوی ځګربه نشم

محمدعادل بړیڅ : یوعالم‌او پرهیزګارسړی‌ؤ په (ښوراوك) کښې یې استوګنه‌دراوده ده د«محاسن الصلواة» په‌نامه‌یو کتاب نظم کړی‌دی . دمحمدعادل پلارمحمد فاضل‌هم‌یو پوه‌سړی‌ؤ چه‌د«روضه‌ربانی» مؤلف‌دی . دمحمد عادل یو دوه بیته‌دادی :

هغه خلق عا صیا ن د ی    چه په فرض کښې کهالان‌دی
علم‌فرض پر هر سړی د ی    چه‌فرض نه‌کاڅه کسان‌دی

ریدی‌خان مهمند : دغیاث‌خان زوی‌دی چه دشاه حسین په‌دربار کښې یو مخور او معززسړی‌ؤ. محمدهوتك وايي‌چه ریدی‌خان دبلاغت‌علوم لوستی دی اواشعار یې خوازه دی. ریدی‌خان په (١١٣٦ه) کال‌دشاه محمود سره (اصفهان) ته‌ولاړ ، چه واپس راغی‌نو دمیرویس‌خان له‌وخته یې‌دشاه محمود ترجګړوپورې ټول‌واقعات په‌څلورزره بیته‌مثنوی نظم کړل‌او نوم یې بړی «محمودنامه» کېښود، وايي‌چه‌شاه‌حسین‌ېدی کتاب‌زرطلاوی‌ورو ښېلی.

ریدی‌خان دغزلواو رباعی‌ګانویو دیوان هم‌درلود . دمحمود نامې یوخوږ باب په «پټه‌خزانه» کښې‌ساتل‌شوی دی . چه‌دلته ترې یوڅه شعرونه رااخلو ، داهغه برخه‌ده‌چه حاجی‌میرویس درسول‌الله (صلعم) په‌روضه کښې دخپل‌قوم دداد‌خواهی سوال کاوه اوهغه مبارك ته‌یې‌دخپل قوم دظلمونو حال بیاناوه .

ولاړی دښپې‌یی په‌یثرب کا فریاد    رسول‌دخدای ته‌چه‌شو قوم بر باد
ستا بر امت راغی د ظلم‌د و ر ا ن    و اوره رسوله ددی قوم فغان
پښتون خوستا په نامه ځان کړه فدا    ای خیر الناسه واوره ته یې ندا
وژ غوری دوی ته دظا لم له لا سه    ګـرګین له منځه دپښتو ن وباسه
ستا په نا مه دی کلمه‌ګویه پښتون    نه به‌شی هیڅکله له تا نه را ستون
مر ګ و ژو ندون موداسلام دپاره    ستاد در بار ستاد سلام د پاره
مه موکړې‌هېر خیرا لوری رسوله    فخر کو نین نور الهدی‌رسوله
اوښکی می څاڅې‌پر در باریم‌ولاړ    قوم شو په‌اور دظلم ټوله لتاړ
یو وار نظرو کړه په‌موږ چه شو وړ    وظا لما نو ته تر څو به یو پړ
که‌ستا نظر نه و ی خراب شوپښتو ن    په‌اورد ظلم‌توز کباب شوپښتون

راغلم له لیرې ستا در بار ته نبي — ته مې شفیع شه خدای غفار ته نبي

چه په پښتون قوم نازل کا رحمت — کړې ئې ناموس خوندي په خپل مرحمت

لاس د ظالم یې له گر یوانه کا لنډ — وچ شي دظلم د ګندو خیرو ونډ

دا مې دی سوال ولاړ دي درته یمه — محتاج دي تش و لنړ نظرته یمه

دقوم حال کړم در ته عرض په ادب — ته ئې بادار د کل عجم و عرب

بې له تا نه لرې پښتون خوا له گر — ته ئې ملهم دخوږو زړو دېر هر

وژغوره زمونږ نام ونا موس له بیداد — کړو بې ناموسو ظالمانو برباد

سر که را پورته زمونږ حال وګورو — د ظالم ظلم بد احوال وګوره

دامثنوی حقیقتاً ډېره مؤثره او سوزناکه ده . د زړه رښتیني احساسات پکښې تصویر شوي دي نو په دې لحاظ دپښتو ادب شاهکاریې بللی شو .

محمد طاهر جمریانی : دهوتکو ددوري یو پښتو شاعر دی ، ده به په قندهار کښې دتجارت کار کاوه . یو ظریف خوش طبعه زلمی اود محمد هوتك ملگری واو کله کله به یې ښه ښه اشعار ویل . په پټه خزانه کښې یې داشعارو نمونه شته .

محمد عمر : په قام لوانړ اویو پښتون شاعر دی .ددغه محمد طاهر ملګری وه . دوی دواړو به همیشه یوله بله خوش طبعی کوله اویو بل ته به ٔبې لطیفې نکتې ویلې . یوه ورځ محمدعمر په مجلس کښې د ټوکې په ډول محمد طاهر ته داقطعه وویله :

وایې دا چه صحبت کاندي — یو له بله ډېر اثر

په کلو دې مصاحب شوم — ستا صحبت نکړ مه خر

نومحمد طاهر یې په ځواب کښې داقطعه (ټوټه) وویله :

صحبت ډېر اثر کا گوره — منکر نشي دا ثر

ته د مخه هغه شي وې — اوس انسان شولې بشر

محمدایاز نازی : یو پرهیز گار سړی ودپښتو اشعارویو دیوان یې درلود اشعار یې عارفانه اوپاخه دي . دی په اصل دقندهارو امگر تل به په صحراؤ گرزیده ، او ریاضت اوعبادت به یې کاوه .

دا وروسته رباعی ئې وګوری :

زړونه خوښ کړه دانیکی ده د رښتیا — مکړه چا باندې تیر نه په جفا

د خدای کور مه ورانوه په ستمو — دخدای کور و ګڼه زړه چه وی صفا

محمد حافظ : دمحمد اکبر بارکزی زوی دی یوعالم اوواعظ سړی و . په قندهار کښې اوسېده به کله کله په خطبو کښې خپل اشعارویل او خلقوته به یې نصیحت اووعظ کاوه . دهٔ د «تحفهٔ واعظ» په نامه یو کتاب لیکلی دی او واعظانه اشعار پکښې دی .

یو څو بیتونه یې دادي :

کم بخته مکوه حرام چه بد دی — چه کړی حرام هغه باطن کښې ددی

اعمال یې ټوله په عقبی کښې رددی — په لویه ورځ به یې وی تورمخونه

ملاباز توخی : دکلات په (التغر) کښې اوسېده. محمد هوتک ملګری اوهمعصرو

محمد هوتک کښلی دی « چه دی په هرقسم اشعارو کښې استاد او دلطیفی طبعی څښتن

دی . کله چه قندهار ته راشی زمونږ مجلس په تودوی» محمد هوتک وایی : چه ملا باز یوه

ورځ له کلاته راغی ، په قندهار کښې زما مېلمه شو، دستی ما چرګ حلال کړ او طعام

می تیار، چه دستر خوان راغی نوملا باز هسی شعر ووایه :

| | |
|---|---|
| پر کو ر و یې رمې ګر زی | دباز برخه یو چیچی دی |
| د باز ښکار و ی د غرڅنو | اوس می بس ها سپینکی وری دی |

ددی وایی چه ماژرهغه وری حلال کړاو مېلمه ته می پوخ کا .

نصرالدین خان اندړ : دشاه حسین ددربار له شاعرانوڅخه دی. دی په اصل دغزنی و

---

مګر بیادشاه حسین په وختو کښې قندهار ته ولاړ اوهلته پاته شو .

دینتو شعردیوان یې هم درلود او «نصر» یې تخلص و د یوه بدلی دا دوه بندونه

یې ولولی :

---

| | |
|---|---|
| دخوار عاشق ژړا مدام وی داځه کاردی نا | کوی په پټه خوله همدغه یی ګفتاردینا |
| ددې مینو پرزړه رب اینبی داغونه دی | چه په ارمان دنیا یسته زیبا مخونه دی |
| تل ژړا کاا او په ناروپه فریادونه دی | هوچه عاشق شی دهغوکله قراردینا |
| دعاشقانو زړه یې مات کا نه رغیږی نا | هو پرشیبه با ندې پټری کله جوړیږینا |
| چه دو صال په امید هرعاشق اوسیږی نا | هیڅ نه جوړیږی دبیلتون کاری پرهاردینا |

عبداللطیف اڅکزی: دده پلار غلام محمد له (بستان) څخه قندهار ته راغلی و ، او په

(ماشور) کښې اوسیده . عبداللطیف دشعر ویلو یوه لطیفه طبعه درلوده .محمدهوتک

وایی : چه «دی اوس دځلو پښتو کالودی ، سره ددې چه عمرئی پوخ دی، دځوانی

خوشحالی کا، او مجلسیان یې په صحبت نشاط مومی . په مجلسو کښې اشعار بداهتاً

لولی اوقصی کا» دده داوښ او سوی قصه په پټه خزانه کښې راغلی ده، چه ډېره

خوزه اوروانه ده . دسر یو څو بیته یې دادی :

| | |
|---|---|
| عوز ونیسیء یارانو، داوښ اوسوی قصه شوه | خورا ډیره خو ږه شوه |
| یو سوی داوښ آشـــناشو | بیحده یې همراه شو |
| یاری به یې کوله یوله بلې یارانه شوه | خورا خو ږه قصه شو ه |
| اوښ ویل چه سویه | ای زما یاره نیـکخویه |
| بې تامی بنادی نشته شپه اوورځ می په تابه شوه | خو را خوزه قصه شو ه |
| تول عمر یې صحبت کا | دسو ی سره الفت کا |
| شپه یې بیلتون نه کا یوله بلې مرکه شـــوه | خورا خو ږ ه قصه شوه |
| سوی و،داوښ په کور کښې | ژوندون یې په سرور کښې |

خورا خوزه قصه شوه — قصه به يې شروع کړه هرسهار څو به غرمه شوه

صدر دوران بهادرخان: داسړی دشاه‌حسین ددربار یو غښتلی سپه‌سالار، یوزړور عسکر او یوادیب پښتون و. شاه‌حسین به‌ورته د«ورور» خطاب کاوه، اوعوامو (امیرالامرا) باله. ده دعالمانو اوادیبانو سره ډېرمینه لرله. په‌خپله به‌یې هم‌خوازه اشعار ویل. وایی چه‌دی ډېرسخی اوځوانمرد سړی و، همیشه به‌یې دغریبانو مدد کاوه، اوعالمانو او شاعرانو ته به یې انعامونه ورکول. دده دیوی‌ملی‌خوزی بدلې دایوڅوبنده ولولی.

بدله

بېلتون دې زور وردی ترلیمومی سهار نم ځاځی — لکه شبنم ځاځی
داسره یاقوت می به لمن کښې ستا په غم ځاځی — په غم الم ځاځی
گوره لیلی باران داو ښکو ستا په چم ځاځی — څنگه پرخم ځاځی
راغله لیلی پر شینکی خال نڅا په گلو کوی — په‌سرومنگلو کوی
سهار چه وزی سیل کا، غنې په بلبلو کوی — گل به‌اور بلو کوی
ملالې سترگې یې کاته په ویر ژلو کوی — زیب په کجلو کوی
دژوبل زړه وینې په هر گړی هردم ځاځی — لکه شبنم ځاځی
ښکلې نجلې دباغ په اورمه ځه نڅا مه کوه — عاشق‌رسوامه کوه
وریت شوی زړه می دی مین پوری‌خندامه کوه — راشه جفامه کوه
زه‌یم پتنگ ته یې ډیوه ماجلا بلا مه کوه — نورظلم بیامه کوه
یم ستاله عشقه لیونی پرما، ماتم ځاځی — غم‌والم‌ځاځی (۱)

محمدهوتک: داسړی دپښتوژبې یونوموړی لیکوال شاعراویوپوه مؤرخ دی. پلاریې داودخان نومېده. په(۱۰۸٤ه) کال په (کوکران) کښې وزېږېد. پس له تحصیل څخه دشاه‌حسین په‌امر قندهار ته‌روغی اود دغه باچادحضور ادبی لیکوال شو دده‌یو مشهوراثر چه دپښتو ژبې یوادبې اوتاریخی شاهکار گڼل کیږی «پټه‌خزانه» ده دا کتاب یې دشاه‌حسین په غوښتنه په(۱۱٤۲ه) کښې تمام کړی دی اود(٤۹) تنوپښتنو شاعرانوحالات په کښې بیان شویدی محمدهوتک د(خلاصه‌الفصاحة) په‌نامه یو بل کتاب هم‌په‌پښتو لیکلی دی. اودفصاحت علوم یې په کښې بیان کړی‌دي یو بل‌علمی اثریې «خلاصة‌الطب» نومېږی، په‌دی کتاب شاه‌حسین‌زرطلاوې‌ورکړې‌وې محمدهوتک دقصیدو، غزلو اورباعی گانو یودیوان هم درلود. دی‌وایي «چه زماعمر په لوستلو اود کتابو په کښلو تیرېږی اوبې له‌دې پله مشغولتیا نه‌لرم» دده دیوغزل یوڅوبیتونه دادی،

ساقی پاڅه دسرو ملو ډك یوجام را — ستاله غمه‌ناآرامه یم آرام‌را
بې له میو دبهار ننداري څه کړم — پسرلی‌شودخوښی یوښه پیغام‌را
دبېلتون په‌تاریکیو کښې می‌زړه‌شین‌شو — رڼا لمر دجام دمیو په‌ظلام‌را
نه‌نشاط شته نه‌مستی شته، نه‌رندی شته — چه‌شم‌رندهغه‌اوبه‌علی‌الدوام‌راً
په اوبو می سوځېدلی زړه خوراتو دکا — محمدته‌داورډك یوهسی جام‌را

---

(۱) پټه‌خزانه

دپټې خزانې نثر: پټه خزانه سربېره په تاریخي لحاظ د پښتو د نثر له مخه هم یو خورا قیمتي اثر دی ددې کتاب نثر د پښتو په پخوانو او د دولسمې پېړۍ په نثرونو کښې نظیر نه لري دخیر البیان او اخون درویزه نیم منظوم نثر که څه هم دخوشحال خان او عبدالقادر خان په وخت کښې څه قدر اصلاح شـوی او دشعر له رنګه راوتی و، مګر بیا هم دپټې خزانې نثر ته نه رسېږي. محمد هوتك یو سلیس، روان دپښتو په محاور او خوږو اتږو برابر نثر میدان ته راوویست ده دمسجع او قافیه دار نثر کړی ماته کړه او یو خوږ او خوندور سبك یې غوره کړ «دعیار دانش» او «ګـلدستې» نثرونه که څه هم مسجع نثرونه نه دی، مګر بیا هم جملې اوږدې او د عطفو نو استعمال په کښې ډېر دی، لکه د پټې خزانې د نثر جملې وړې وړې دی او عواطف هم په کښې نسبتاً کم استعمالېږي، نو په دې لحاظ ور ته غوره نثر ویلای شو. اوس یې د نثر په نمونه کښې دا یوه ټوټه ولولی: پادشاه عالم پناه په ارګ کښې د قندهار، هغه قصر چه نارنج باله شي هلته په هفته یوه ورځ دربار کا، په کتب خانه کښې، او په مجلس کښې علما جـمع کېږي او فضلا او شعرا تولوی زه محمد هوتك کاتب ددې کتاب هم په دې مجلس کښې یم، او د پادشاه ظل الله اشعار او ابیات په قلم کاږم، او کـتاب د دیوان یې مرتب شوی دی، کـله په پښتو ژبه اشعار وایي او کـله فارسي ژبې ته هم میل کا او استاد العلما ملایار محمد ته یې قرائت کا. چه سهو سقم لحني زایل کا، او د پادشاه په اشعارو کښې نږه سهو لږ پېده شي او علما یې تول په فصاحت او بلاغت قایل دی او سماع ته مایل.

## دهوتکو د کورنۍ شاعرانې ښځې

میرمن نازو: د پښتو شاعره او یوه ادیبه ښځه وه د حاجي میرویس هوتك مور او د سلطان ملخی توخی (۱) لور کېده. دا یوه همتنا که: سخاوتي او پوهه ښځه وه، وایی چه دې په دوه زره بیته کښې داشعارو یو دیوان درلود. په پټه خزانه کښې د میرمن نازو دا اورو ستهر باعي راغلی ده:

سحر که وو د نرګس لیمه لانده — څاڅـکي څاڅکي یې له سترګو څڅېده
ماوې څه دی کښلې ګـله ولی ژاړې — ده ویل ژوندمې دی یوه خوله خندېده

❀ ❀ ❀

محمد هوتك وایي: چه میرمن نازو نورهم داسې اشعار لري چه سړی یې هم نه شي ویلای.

دمیرمن نازو د تاو او نه لوی صفت دادی چه ددې دغیرت او همت په هې او تدبیر په غیږ کښې د حاجي میرویس غوندې یو پښتون سردار پالل شوی او روزل شوی دی.

میرمن زینبه: دحاجي میرویس لور او یوه هوښیاره عالمه او شاعره ښځه وه، د پاچاهی په کارو کښې هم رسا او صحیح فکر درلود، او دخپل وروه شاه حسین سره به یې د پاچاهی په امور کښې مرسته کوله. وایی چه دې به ښه ښه اشعار ویل سربېره په دې بوښه ابی ذوق یې هم درلود دشاعرانو قدر به یې کاوه او د پښتو شاعرانو د یوانونه به یې لوستل.

میرمن زینبې دخپل ورور شاه محمود په مرګ یوه ډېره غمجنه او مؤثره مرثیه (ویرنه) ویلې ده چه دپښتو دلودو ادبي آثارو څخه ګڼل کېږي یو څو بنده یې دادی:

---

(۱) سلطان ملخی توخی د(۱۰۶۸هـ) په حدودو کښې له غزنی تر جلدك د پښتنو مشر او مستقل حکومت یې کاوه.

زغشو چه وروور تېر له دنیا شونا　　قندهار وارده په ژړا شونا
ژړه مې په وير کښې مبتلا شونا　　چه شاه محمود له ما جلا شونا
داروڼ جهان را ته تور تم دینا　　ژړه د پښتون په غم کرم دینا
هو تك عجن به دې ما تم دینا　　د پاچاهۍ تاج موبر هم دینا
چه شاه محمود تېرله دینا شونا　　قندهار وارده په ژړا شونا

ځوان ومېړه د توري جنګ و نا　　ولاړ د کام په نام و ننګ ونا
دشمن له ده په وینو رنګ ونا　　پر میدان شیر وپا پلنګ ونا
افسوس چه مرګ دده پرخوا شونا　　قندهار وارده به ژړا شونا

محمود ده نه دي پوازې خورژ اړی　　پرمرګ دې توله کلی کورژاړی
خپلوان لا څه پاچا دې وروو ژاړی　　لښکر سیاه پلی دې سپور ژاړی
پښتون دې ټول په واویلا شونا　　قندهار ټوله په ژړا شونا

هوتکو ژاړی محمود شاه څه شونا　　پښتنو ستاسی لوی سپاه څه شونا
له اصفهانه تور فراه څه شونا　　پاچاچه وحشمت پناه څه شونا
دپښتنو پر تم فنا شونا　　قندهار وارده په ژړا شونا

محموده ځوان وې ولی ولاړې له ما　　له تخت و تاجه ته په څه شوې جلا
اصفهان ولی پاته شو نه نه تا　　سر دې را بور ته کړه چه څه کړی اعدا
دښمن ولاړ بیا شا و خوا شونا　　قندهار وارده په ژړا شونا

❀　❀　❀

## ددې دورې یوه ډله نامشهوره شاعران

په دې دوره کښې ځینی داسی شاعران شته چه دهغوی په باره کښې څه پوره معلومات په لاس نه لرو، دا شاعران صرف د پادری هیوز انګریز په ښودنه پېژنو ده په خپل کتاب «کلید افغانی» کښې چه د پښتو داشعارو انتخابات دی، ددې شاعرانو یو یو یا دوه دوه غزلونه راوړی دې، او ددې نومیالو شاعرانو نومونه یې ژوندی ساتلی دی. دا شاعران په اول جلد پښتانه شعراکښې هم راغلی او اشعار یې له «کلید افغانی» څخه رانقل شوی دی ددوی ددغو اشعارو له مطالعې نه معلومېږي چه ټول د پښتو ژبې زبردست او پیاوړی ادیبان او ددیوانونو خاوندان وو، ددوی شعرونه اکثر عشقی رنګ لری چه ځینی ساده او ځینی دلوړو تخیلاتو او تشبیهاتو په کانه ښایسته دی

په دې لحاظ ویلای شو چه دا شاعران څه د رحمان بابا ادبی مکتب کښې داخل، او څه د حمید دادبی مکتب پیروان او شاګردان دی. د عصر او زمانې په لحاظ که څه هم ځینی یې کښې د عبدالقادر ختك همعصر معلومېږي مګر اکثریې د (۱۱۰۰ هـ) څخه را په دې خوا تېر شوی دی نو ځکه ددولسمې پېړۍ په شاعرانو کښې حسابېږي نومونه یې دا دی: کاظم (په قام ختك و) معزالله. عثمان. اودل. اشرف. فاضل. ابراهیم. فضیل. حسین. مهین. عصام. ابوالقاسم. صدیق. غفور. فتح علی. علیم. عبدالصمد. کامګار. په قام ختك دی، او په (۱۱۶۵ هـ) کښې وفات شوی دی (۱) د معزالله، ابوالقاسم او کامګار دیوانونه په برتش موزیم کښې شته.

---

(۱) دبلومهارت فهرست

## سدوزي شاعران پاچاهان

احمدشاه بابا: «احمدشاه بابا پرته له دې چه د پښتنو یو بریالی واکمن او ستر پادشاه و، د پښتو ژبې یو ښه شاعر او ادیب هم و، ده لکه چه د پښتنو ملک او وطن او نوم او عظمت ته پوره خدمت کړی دی دغسې یې د پښتو شعر او ادب ته هم توجه نرله او په دې لار کښې یې هم زیار ایستلی دی، ده خپلې توري سره قلم، او د خپلې سربازۍ او توریالیتوب سره علم او ادب هم ملګری درلودل.

احمدشاه بابا په پښتو کښې یو مرتب دیوان لری (۱) چه تر دری زرو بیتو پورې رسیږی د ده وینا ساده او بې تکلفه ده، د عشق او تصوف خواته زیات میلان لری او په دې برخه کښې د رحمان بابا د مکتب تابع او پیروښکاری.

هو! د ده په شعر کښې د پښتنوالی، توریالیتوب وطن خواهۍ، زړورتیا، عزم او ارادې جذبات هم په ښه شان څرګند او ښکاره ده، او په دې حصه کښې ورته د خوشحال د مکتب پیرو ویلای شو یو ځای کښې په خوږه مینه وطن ته خطاب کوی:

ستا د عشق له وینو ډک شو ځیګرونه     ستا په لاره کښې بایلی ځلمی سرونه
که هر څو می د دنیا ملکونه ډېر شی     زما نه هېر نه شی دا ستا ښکلی باغونه
د ډیلی تخت هېرومه چه را یاد کړم     زما د ښکلی پښتونخوا د غرو سرونه
که تمامه دنیا یو خواته بل خوا یې     زما خوښ دی ستا خالی ډګرونه

احمدشاه بابا ټول پښتانه یو ګڼی او د ملی وحدت تبلیغ کوی:

ټوله یو دی که غلجی دی که ابدالی     ښه هغه چه یې ښې ښه دزړه صفا ده
پښتانه دې ټوله لاس سره یو کاندی     چه مونږ غزا هر لوری شا و خوا ده

د توری او ننګ او برې په باب کښې وایی:

په بر ښنا د توری ژوند کوه احمده     د برې جولان پرلورد هر دیار کړه
پر ننګ مړ خوشه مړ نه دی     د بې ننګه ژوند جفا ده
لاس به وانه خلم له ننګه     که په ننګ پاته دنیا ده
چه د هند د ملک فتحه می نصیب شوه     نور ایران اره په توغ په نغاره ځم
په دا کړی دادې خدای نه شی ناراضه     ترنګین می ایران لاندې شاهانه ځم

په اجتماعی خوا کښې وایی:

یار هغه دی چه په غم د یار شریک وی     چه په غم یې غمجن نه، هغه نامرد دی

دار باعی هم د ده ده

سحر سبا دی په ژړا ژاړم     هسې غمجن یم ستا دیدن غواړم
دزړه استوګه له چا نه نه شی     که می یار راشی هله به ویاړم

تیمورشاه: دا پښتون پاچا هم د پښتو ژبې ادیب او شاعر و. په پارسی ژبه کښې هم یو دیوان لری تیمورشاه په پښتو ژبه ښه ښه اشعار ویلی دی، مګر له بده مرغه اکثر ورک دی او لږ لیدل شوی دی د ده اشعار یې عشقی رنګ لری او د رحمان بابا د سبک تابع دی. دا لاندې عشقی غزل یې ولولی!

نن می بیا د تورو سترګو سره جنګ دی     پر لبانو یې دزړه د وینو رنګ دی
که پرېکړی سر په لاس وراره ورشم     لا په دې یې باور نه شی زړه یې سنګ دی

---

(۱) دا دیوان په (۱۳۱۹ش) کښې پښتو ټولنې نشر کړی دی

| | |
|---|---|
| نن می بیاله تو روستر گوسره جنګ دی | پر لبانو یې دزړه دوینو رنګ دی |
| که پر ښکلی سرپه لاس ورلره ورشم | لا په دا یې باورنه شي زړه یې سنګ دی |
| ستاد حسن لښکر راغی ځان یې بایلود | دعاشق دزړه میدان هر ګوره تنګ دی |
| عشق دی مشک پټول نه شي تیمور شاهه | چه په خپله ځان رسوا کا هغه رنګ دی |



## داحمد شاه او تیمور شاه په زمانه کښې

### پښتانه عالمان او شاعران

ملا عبدالرشید : دسلطان حسین زوی دی، په خټه قریشی و، پخوانی نیکونه یې په ملتان کښې اوسېدل، مګر ورنیکه یې بیا لنګر کوټ ته په کډه راغی عبدالرشید په خپل وخت کښې یو ښه عالم او دپښتو ادیب و : ده په (۱۱۶۹) کال د « رشیدالبیان » په نامه دپښتو په لنډه مثنوی یو کتاب نظم کړی دی، چه دابتدایي مسئلو او عقاید و مجموعه ده . ددی کتاب شعر روان اوسلیس دی، دا کتاب په پښتو کښې ډیر شهرت لری، واړه هلکان، نجونې او ښځې یې په کورونو کښې وایي اودپښتو دکورنو مکتبو، و یو درسی کتاب دی (۱) یوڅو بیتونه یې دادی :

| | |
|---|---|
| چه محکم په لمانځه اوسی | له دنیا به ایمان یوسی |
| هم به خدای پرې رضامن شي | پرې آسان به ځنکندن شي |
| تاریکی به ترې رب دور کا | پرې به قبر کیلی نور کا |
| پاک رسول به یې شفیع شي | ملایک به یې مطیع شي |
| په ښي لاس به نامه ورکا | سخته وریځ به یې اختر کا |

خانګل خلیل : دپښتو ژبې یو ښه شاعر دی، دی د (۱۱۵۰ هـ) په حدو دود پېښور په خواو کښې اوسېده پښتانه شعرا لیکي چه ده ښه اشعار ویلي دی او په شعر کښې دحمید بابا پر سبک تللی دی» داسې ښکاری چه دی په قام خلیل مومند و، دا بیتونه دده دی :

| | |
|---|---|
| داحسینه پرې مسته په خـو ا راغـله | که ومځکې ته سپوږمی د سما راغله |
| خانګل ګل دمضمون تول ترهـی حد کړ | چه بلبله دیـارسې په ژړا راغلـه |

پیرمحمد کاکړ : داسړی داحمدشابا ددربا یوعالم اوشاعر ود کاکړوله ( ژوب ) څخه قندهار ته راغی، اونه قندهار کښې دشاهی کورنۍ اوداحمدشاه بابا دزامنو استاذ و، دی دپښتو ژبې په خدمت کښې هم ښه برخه لری تقریبا لومړی سړی دی چه د پښتو دژده کوونکی مندانو دپاره یې د « معرفت الافغانی » په نامه یو تعلیمی کتاب لیکلی دی چه شهزاده سلیمان ته یې ډالدې کړی و دا کتاب دپښتو ژبې ابتدایي ګرامر و، ځینې لغات محاورې، اودشیانو نومونه په کښې هم دښودنې دپاره راغونډ شوی و ، دا کتاب دنثر برخه هم لری نثریې خوږ، په محاوره برابر اوجملې یې لنډې لنډې اوودې دی ' یوڅو جملې یې دادی ( کښت خواری غـواړي، دکښت اوس وخـت نـه دی دکښت وخـت

(۱) دا کتاب په هند کښې چاپ شوی دی

لاپسی دی ، ګښت ډېر مه کوه ، واك به دې پرېوته رسېږي ، او به پرې وچې شي ، حاصل به دې له لاسه ووزي خوارۍ به دې ابته شي ) .

پیر محمد د پښتو ژبې یو ښه مشهور ادیب دی چه د پښتو د اشعارو یو دیوان یې په (۱۱۹۶ ه) کال لیکلی دی ، شعر یې متین او استادانه دی ، اخلاقي ، عشقي او تصوفي اشعار یې ویلي دي اشعار یې په ساده ګۍ ، رواني او خوږ والي کښې د رحمان بابا سبك ته ورته دي او په ناز کخیالۍ او ادبیانه تلازماتو کښې د حمید د مکتب سره اړخ لګوي ، خو په هر صورت د پښتو یو پیاوړی او قوي شاعر ګڼل کېږي . د پخوانو شاعرانو اشعار یې په تنقیدي نظر کتلي دي او د هر یو ښه والی او بد والی یې بیان کړی دی . وایي چه دی په عربي او فارسي کښې هم ځینې اشعار لري . د ده لوړ ادبي مقام ته میرزا حنان داسې اشاره کوي :

داخوند ملا پیر محمد نظم که واورې    هر ګفتار یې دی په مثل د بلبل

پیر محمد د عشق او مینې په خوا کښې ښه پر سوز ابیات لري لکه چه وایي :

سوز ګداز مې د عشق زړه کړ له پتنګه    او س هغه مې په څراغ د مینې سوی دی

ساقي چه را کړه پیاله د مینې    نور یې پیالې مې ذرې ذرې کړې

په بوی د زلفو یې لیوني کړم    چه په بار خویې نسیم خورې کړې

غوټې د ګلو پر غوړ پېده ده    بلبله راشه که ننداري کړې

---

زړه مې دی ډك شوی په خوناب له ډېره غمه    وینې مې چه خورې هغه خونخوار له ره وردومه

راشه ګلعذاره زلفې ورووړو خوزوه ته    زړه مې په تال کښېووت په احتیاط یې زنګوه ته

په اجتماعي او اصلاحي خوا کښې یې دا بیت څومره اعلی دی ؟

هر حاکم چه د خپل نفس تربیت کا    ولایت به یې له عدله معمور نه شي

په دې ډول د پیر محمد په دیوان کښې نور هم له سوز او درده ډك اشعار شته چه په ویلو یې سړی خامخا او ښکې تویوي او زړه ورته نه شي ټینګولی .

د پیر محمد ژوندتر (۱۱۹۶ ه) پورې معلوم دی دی په آخر عمر په قندهار کښې وفات او هم هورې مدفون دی .

عبدالرحیم هوتك : د قندهار له مشهور وشاعرانو څخه دی اصلا د کلات د (ښه بولان) و ، په قندهار کښې اوسیده ، مګر کوم وخت چه نادر افشار قندهار ونیوی ، جلا وطن شو - بخارا سمرقند ، او ترکستان ته ولاړ ، او ډېر عمر یې په غربت کښې تېر کړ په دې یېلتون کښې یې ډېر سوزان او دردمند اشعار ویلي دي . عبدالرحیم د پښتو ژبې یو ښه شاعر دی

تقریباً په شپږ وزرو بیتو کښې یو دیوان لري (د رحیم قندهاري په نامه یو دیوان د پېښور د اسلامیه کالج په کتابخانه کښې شته دی . دا نسخه په (۱۲۷۹ ه) کښې کښل شوې ده) عبدالرحیم د ساده وینا خاوند او د رحمان د ادبي مکتب پیرو او شاګرد معلومېږي پر ته له دې څخه دی د عربي علومو یو ښه عالم هم و ، د عشقي ، اخلاقي او ذوقي په محبت کښې ښه اشعار ویلي دي ، مګر د روحاني دنیا سره ډېره علاقه لري د ابیتونه د ده دي .

که هزار ځله تقوی پرهیز ګاري کړې    ښه دې نه شته چه مدام دل آزاري کړې

د زړه ولې مې په تاپسې پرې ی کېږي    را ته و ګوره قربان دې د دیدار شم

ښار یسته قندهار ډېر ډېر یاد ومه    نه هېرېږي که هر څو یې هېرومه

شیر محمد هوتك: دقندهار له‌مشهور وعالمانو څخه‌وه‌په (۱۰۹۲ﻫ) کال په قندهار کښې زیږیدلی او بیا په (۱۱۷۵ﻫ) کال وفات اودغلته ښخ‌دی. شیر محمد یو ښه عالم او د پښتو ژبې شاعر و یو کتاب یې د «اسرار العارفین» په‌نامه د پښتو په لنډه مثنوی نظم کړی دی چه مضامین یې دینی او مذهبی دی. بل اثر یې «تجوید افغانی» نومیږی دا کتاب هم د پښتو په لنډ بحر کښې یوه مثنوی ده اودعلم قرأت او تجوید بحث کوی. په اول جلد د پښتانه شعرا کښې دده د کلام نمونه را غلې ده.

سعادت خان: (۱) په اصل دهند دبهار دصوبې و، خو په کابل او ننګرهار کښې یې استوګنه درلوده، دی په فارسی، هندی، او پښتو ژبو پوهیده په (۱۱۵۰ﻫ) کال یې په کابل کښې «کیمیای سعادت» نومی کتاب په لنډه پښتو مثنوی نظم کړی دی چه دینی او طبی مضامین لری.

ابراهیم خان: په‌قام کاکړ او دپیرمحمد شاګرد و، داحمد شاه بابا په زمانه کښې زیږیدلی او تر (۱۲۰۳ﻫ) پوری ژوندی و. ابراهیم د پښتو ژبې شاعر دی وایی چه خوازه خوازه اشعار به یې ویل میا فقیر الله جلال آبادی: دعبدالرحمن زوی او دجلال آباد په خاص حصارك کښې (۲) زیږیدلی دی دی په خپل وخت کښې واوی عالم بزرګ او نیك سړی و، احمد شاه بابا ورته زیاته عقیده لرله او دیوبل سره یې خط او کتابت درلود، دی یو عارف او روحانی سړی و، په عربی کښې هم تالیفات لری، په پښتو نظم یې هم د «فواید فقیر الله» په نامه یو کتاب لیکلی دی. مګر دا کتاب تر اوسه موندل نه دی شوی. دی په (۱۱۹۵ﻫ) کال دهند په ښکار پور کښې وفات او هوری مدفون دی.

اخون ګدا: داورنګ زیب مغولی پادشاه تر مرګ وروسته دسدوزیو په وخت کښې تیر شوی دی داحمد شاه بابا هم عصر معلومیږی. ګدا دعربی علومو عالم او د پښتو ژبې شاعر و، د «نافع المسلمین» په‌نامه یو اثر لری چه د پښتو په نظم لیکلی شوی او په (اخون ګدای) مشهور دی دا کتاب ددینی او مذهبی مسایلو مجموعه ده په دغه کتاب کښې یې ځای په ځای یو نیم غزل هم راغلی دی، او داسی معلومیږی چه ده یو مستقل دیوان هم درلود. دده کلام عشقی، او صوفیانه دی، درحمان بابا د مکتب سره اړه لری شعر یې دمخصوص رنګ او خوند، سوز او ګداز او ساده تخیل خاوند دی دا بیتونه دده دی:

د سحر چرګه خوږ شی په ګومی | چه تا ناری کړی دلبر می درومی
یو می دلبر ځی بل را نه زړه ورې | زړه می په‌داوړی چه دلبر نومی

..............................

ماوی ستاد در ګدایم هیرمې نکړی | شاه وی ګله هر ګدا دی زما یاد

جان محمد: د پښتور او ننګرهار دخواله شاعرانو څخه دی، داحمد شاه بابا په دوره کښې ژوندی و یو کتاب یې چه «نور نامه» نومیږی مشهور دی، اشعار یې دینی او اخلاقی رنګ لری. دشعر دیوان یې معلوم نه دی فقط یوه عشقی بدله یې داخون درویزه دمخزن له یوی نسخې څخه د پښتانه شعرا په اول جلد کښې را نقل شوې ده یو جان محمد خو مرزا حنان داسی یاد کړی دی:

---

(۱) پښتانه شعرا لمړی ټوك. (۲) مقدمهٔ دیوان احمدشاه بابا ۹۶ مخ

جان محمد حافظ کاکړ په نعت ومدح ـ سیال بي نه وپه پښتو کښې په ویل
نو احتمال لري چه همدا جان محمد به وي

برهان خان: داشاعر هم د احمد شاه بابا له معاصرینو څخه دی دده له یوې قصیدې څخه
ښکاره ده چه دی داحمد شاه بابا سره د (پاني پت) په لښکرو کښې شامل ځکه
چه د دغې تاریخې جګړې کیفیت یې په شعر و یلی دی او د پښتنو جنګی احساسات یې
په کښې څرګند کړی دی دار مستتر فراموی دده اشعار په (ایبټ آباد) کښې پیدا کړی
دواو وایی چه دی د (نادر) زوی و ، چه د هزاره په علاقه کښې اوسیده . داهم وائی چه
برهان خان د خواص خان او افضل خان ختک جګړه ، او د آدم خان او درخانۍ قصه هم نظم کړیده . برهان خان یو ملی شاعر دی لوړه او تاریخی
قصیده یې ویلی ده . چه دسریو څو بیته یې دا دی :

احمد شاه پادشاه په جار و ویله ... دغزا په نیت وزمه له کابله
پښتني میر منې لا ندې کړی کفارو ... دا خبره مې په زړه وګرزیدله
یا به ننګ د پښتنا نه بیرته په ځای کړم ... یا به با یلم ککری پرې با ندې خپله
امیران وزیران واړه ترې چاپېر وو ... دغزا په مهم خوښ شو یو تربله
د بادشاه درې لکه لښکر همه سوواره وو ... د هندوستان په لارې تله واړه خوشدله
دا ټك په سیند یې دوه پوله تیار کړ ... بادشاه پریووت په (مانجه) یې میشته کړله
هر سپاهی یې له بریخو نه کم نه و ... د (روتاس) کوټ یې بې جنګه واخستله
د با هونه لکه فوخ و ریسی راغی ... شپه او ورځ یې خالی نه وه له مزله
مخامخ شو جنګ یې و کړ په میدان کښې ... دور وخه نې تو یخا نه ورچلو له
سمندخان مؤمن خان دواړه شهیدان شول ... احمد شاه زړ ګی ستن ورړیدله
اوه ورځې وه تیا ره پیار نها یی شوه ... د باهو تنه په مځکه لو غړ یدله
مرهټې په لور دغم ناری سوری شوی ... پښتانه تور ه یې ها له وهله
بادشاه جنګ وکړه هرڅوك پرې خوشحال شو ... بیا برهان یې مدام ستا یې له غزله

میاعمر څمکنی . دامشهور عالم او روحانی سړی داحمد شاه بابا معاصرو د پښتور
په (څمکنو) کښې اوسیده احمدشاه بابا ده سره علمی او روحانی روابط درلودل
وایي چه ده د پښتنو د نومونو شجره په پښتو نظم ایکاېي ده چه (د پښتنو نسب نامه) نومیږی
(۱) میاعمر په خپله هم یو عالم ادیب او د پښتو ژبی شاعر و او په اولاده او مریدانو کښې
یې هم پښتانه شاعران لکه (محمدی مسعود ګل او نور) تیر شوی دی

محمدی صاحبزاده: د میاعمر زوی دی ، چه د پښتو ژبی یو خوږ ژبی شاعر و ، د شعر او شاعری
سره یې مینه درلوده او ښکلی دیوان یې درلود ، دی ، یو با ذوقه شاعر اد روحانی مقام
خاوندو ، کاظم خان شیدا د خپل دیوان په مقدمه کښې وایی د چه محمدی ښه طبع او د سخن شناسی
سلیقه لری د خبرو په ښایست کښې له ملګرو نه وړاندی دی اکثر پخوانی دیوانونه

(۱) دانسب نامه مانه ده لیدلی .

يې راټول کړي دي او په مطالعه يې زړه خوشحالوي » د محمدي اشعار عموماً يې عشقي دي او يوازې
کيميا فت دي خو يا دري هيوزېږي ښو بدلې راسا تاې دي ، محمدي کله کله په تخيل او ادبي
تلازما تو کښې د حميد په سبک ځې لکه چه وايي :

نه يوازې لاله ګل دي دوب د سرو وينو په جام کښې
ستا د غم وژلي وا ړه ځې خښېږي ګلګون هسې

مسعود ګل پاسني : د (۱۲۰۰ ه) په حدود کښې يې ژوند کا وه د ميا عمر خوګني
________________
مريد او عقيد تمن و ، مسعود ګل د پښتو ژبې يو ښه شاعر دي ، د د خپل پير په ستاينه کښې
يوه مثنوي ويلې ده چه يوه نسخه يې د لندن په موزيم کښې شته ، د ده په يوه مثنوي منظومه
کښې د احمد شاه بابا د جګړو بيان کړي دي له دغې مثنوي ځخه يې ادبي اقتدار ځرګند
يږي دغه مثنوي دې په رزمي شاعرانو کښې حسابوي يو ښو بيته يې دا دي .

جان محمد درانی دارنګ حکايت کا — حکايت د احمد شاه د ولايت کا
اول کال چه شه داخل په هندوستان — دينه جا بله ملکه تير ګيتي ستان
اراده يې وشوه بيا د قندهار — او مهم يې کړه موقوف د هندوبار
چه داخل په قندهار د شاه قدم شو — نور هرات ته عزيمت په هغه دم شو
له فراه نه چه بادشاه و کړ عبور — هراتيانو وي (۲) مو نږ ه شو محصور
که ترې تښتو په هيڅ لوري نه خلاصيږو — په کلا کښې که کښينو نو حصاريږو
که يې مخې له ورځو يې اعتبار دي — مو نږ مغول او دې دراني د قندهار دي
دوي ځو ورځې وو په راته په دا فکرونه — چه چا پير شو تر هرات د شاه فوځونه
د هرات مغول شو وا ړه کلا بند — والي ډير و هغه کوټ محکم بلند
ترې چا پير د پښتنو ځښې مورچې شوې — د هر چا په لاس توپک نيزه چې شوې
يو پلو د توپخانې و د ندو کار — بل پلو د نيزه باز و کړه نار

( د اجنګي او حماسي مثنوي پسې اوږده ده ، چه په هرات باندې د احمد شاه سخت
جنګونه بيانوي او په آخر کښې د هغه د فتح د ورغيږوي ، مګر په دې شعر کې ډير د وتوا وي
چه پر هرات غالبې شوي وې ، د مغول په نامه بلل شوي دي) .

فيض الله کاکړ : د ملا بابړ زوی دی ، په قندهار کښې او سيده يو عالم
.......................
پرهيز ګار سړي او د پښتو شاعر و ، د احمد شاه بابا له عصره پاد شاه زمان تر وخته
پورې ژوندي و يو غزل يې په پښتانه شعرا کښې راغلی دی .

ميا عبدالکريم ، د خپل عصر مشهور عالم او روحاني سړي و ، استو ګنه يې په (لغمان)
________________
کښې وه ، خلکو ته به يې تدريس او لارښوونه کوله ، بيا په (۱۲۰۷ ه ) کښې وفات او د لغمان
په علي شنګ دره کښې ښخ شو ميا صاحب د پښتو ښه شاعر و اشعار يې د خلقو ياد دي يو ښو شعر و نه
يې په پښتانه شعرا کښې شته .

---

(۲) مقصد هغه پردي خلق دي ، چه پر هرات غالب و او احمد شاه بابا د دوي ځخه هرات و اخيست

۰ حافظ: ددې دورې له شاعرانو یوداسې ی دی . ده د(شاهنامهٔ احمد شاهی) په نامه
په (۱۱۷۲ه) کال یو کتاب منظوم کړی دی دا کتاب (۱۲٤) مخه دی او د احمدشاه بابا
سوانح او جنګی کارنامې بیانوی .

دسر بیتونه یې دادی

| | |
|---|---|
| اول ثناده دسبحان | چه پادشاه دی دجهان |
| که هزارمې شی زبان | په څو قسم که بیان |
| نه به شی له ما ادا | که ګویا شی واړه دا |

دپای بیتونه:

| | |
|---|---|
| شاهنامه مې شوه منظوم | په کاغذ باندې مرقوم |
| ای حافظ طوطی زبانه | ژبه بند کړه له بیانه |
| په دا ختم کړه ګفتار | په تنظیم مه کړه اشعار |

په هر صورت دا کتاب د پښتو په ادب کښې یو مهم کتاب دی . مګر له بده مرغه چه
ټول کتاب مو ګوتو ته نه دی راغلی اونه یې د موږ په باره کښې څه زیات معلومات لرو
ددې کتاب یوقلمی نسخه په برټش موزیم کښې موجوده ده .(۱)

اکبر: په دی نامه یو بل شاعر هم تیر شوی دی چه هغه د(زمیندار) او داولې دورې له

شاعرانو څخه دی .

لیکن دا کبر پر ته له هغه څخه بل دی . دی په (۱۰۱) مخه کښې د پښتو د شعر یو دیوان لری
چه دلندن په موزیم کښې شته ، دا نسخه دا تلسمې عیسوی پیړۍ په آخر کښې لیکل شوې ده .

(۱) فهرست بلومهارت .

نو تخمیناً ده ته د(۱۱۵۰ه) دخوا وشا وشاعر ویلای شو . (۲)

نجیب : یو یوسفزی پښتون و ، په (۱۸۸) مخه کښې د پښتو واشعارو یو دیوان لری چه
دلندن په موزیم کښې موجود دی . دی هم ددویمې دوری ددولسمې پیړۍ په شاعرانو کښې
حسابیږی . (۳)

۴ محمد مظفر : داسړی د پښتو ژبې یو قوی نثر لیکونکی دی . د ده پلار ملا اسمعیل قریشی
نومیده دوی د خوشحال خان له کورنی سره پوره ارتباط درلود او بخله محمد مظفر
دافضل خان خټک له ملګرو او همکارانو څخه و ، محمد مظفر په (۱۱۲۶ه) کښې دافضل خان
په ویناء او تشویق «داعثم کوفی تاریخ» له فارسی څخه په پښتو ترجمه کړی دی: تراوسه
د«پادری هیوز» د روایت په واسطه دامشهوره وه چه اعثم کوفی دافضل خان خټک ترجمه ده
مګر ددغه کتاب دقلمی نسخې له لیدلو څخه معلومه شوه چه د محمد مظفر ترجمه ده . (٤)

(۱) فهرست بلومهارت

(۲) (۳) فهرست بلومهارت (٤) ددې کتاب قلمی نسخه په پېښور کښې د فتح محمد
خټک سره شته چه په ۱۳۲٤ ش کال یې د نقل دپاره پښتو ټولنې ته رالیږلې وه . دا نسخه
(٤۹۵) مخه ده او په ښه خط لیکل شوې ده .

ددې کتاب نثر ډېر ښه او خوږ دی او د ختکو د کورنۍ په تېره د افضل خان د نثرونو سره ډېر نږدی والی لري ، له دې کبله محمد مظفر د پښتو په نثر کښې يو قوي او ټکره سړی ګڼل کيږي په دغه ترجمه کښې ځای په ځای ځنې اشعار هم شته د کتاب د پای يو څو بيتونه دا دي :

په مدت د پاک سبحان — په اقبال د عاليشان

چه تاريخ اعثم کوفي — په پښتو شو له فارسي

که تپوس د خان صاحب شي — مفتخر به يې کاتب شي



## په دې دوره کښې د خوشحال خان اولاده

افضل خان ختک : د اشرف خان زوی او د خوشحال خان نمسی کيږي د ختکو د کورنۍ يو ځلانده ستوری او د پښتو په ادب کښې يو نوميالی سړی دی خصوصاً د نثر په حصه کښې زيات حقدار ګڼل کيږي دی د خپلې کورنۍ يو پوه مشر و چه د پلار تر مرګ وروسته يې (٦١) کاله رياست وکړ کاظم شيدا يې د مرګ تاريخ (١١٨٣ هـ) سنه ښودلې ده . دی يو پوه مورخ هم د نثر په خوا کښې مهم آثار لري ، لمړی مشهور اثر يې «تاريخ مرصع» دی ، دا دده يو ادبي شاهکار او د پښتو په تاريخ کښې يو مهم او لوی کتاب دی . پادری هيوز وايي چه تاريخ مرصع يو عمومي تاريخ دی او د پښتنو او ختکو حالات په کښې دي .

٢- د «کليله او دمنې» پښتو ترجمه ده چه «علم خانهٔ دانش» (١) نوميږي دا د افضل خان د اشعارو د ديوان چاپ شه نه دی ويلی مګر په «علم خانهٔ دانش» کښې يې ځای په ځای ځنې بيتونه او اشعار راغلي دي ، يوه رباعي يې دا ده .

صورت مې هر څو که ډېر زبون دی — که مې د ختکي د لاندې يون دی

زه به په لوري د آشنا خوځمه — که يون مې هر څو په شوا خون دی



## د تاريخ مرصع نثر

نقل دی له اخون درويزه نه چه په مخزن کښې کښلي دي چه عبدالله نوميده او نومړی د کانسي کړم په اور مړو کښې ، علم او صلاحيت يې ډېر وله اولاده د صالحانو ، زوی يې پيدا شه ، نوم يې بايزيد کېښود ، په علم يې کښيناوه ، تحصيل يې کړ او په طاعت او عبادت جد و جهد وکړ ، اما پس له هغه يې چه څه نقد په لاس راغی سمرقند ته په سوداګری د اسونو روان شه دوه اسونه يې واخيستل هندوستان ته روان شه ، په موضع د کالنجر ورغی هورته يې اتفاق د صحبت د ملا سليمان سره پېښ شه الخ .

د تاريخ مرصع نثر د خوشحال د سبک پشان دی او په دغه سلسله پورې اړه لري ، نسبتاً ساده او روان دی ، او د هغه وخت په اثرو کښې ښه قوي او لمړی درجه نثر ګڼل کيږي .

د تاريخ مرصع درې نسخې د لندن په موزيم کښې شته يوه نسخه يې (٧٦٥) مخه ده چه په ١٢٧٢ هـ کښې ليکل شوې ده ، د تاريخ مرصع په اووم دفتر کښې د پښتنو روحانيونو سوانح هم بيان شوي دي ،

(١) يوه نسخه يې په کابل کښې د «افغاني نويس» سره شته .

**علیخان** شنوا بلبل اویو نامتو ادیب دی د افضل خان زوی او دخوشحال خان کړوسی کیږي، علیخان په پښتو ښې یو ورو کی قیمتی اوخوندور دیوان لري، مضامین یې اکثر عشقي او تصوفي دي ځینې اخلاقي او اجتماعي اشعار هم په کښې پیدا کیږي. علیخان یو علم سړی وو ده په دا نکښې د هر علمي اصطلاحات شته، دی په خپل تېر کښې دشهرت خاوندی او ده پر وروستني شاعرانو یې د اشعار و ستاینه کوی، شمس الدین کاکړ وایي:

| | |
|---|---|
| دعلیخان په رنګین شعر که خبر شې | هر غزل یې دی تنها دیوان د شعر |

ده په وخت د پلار تر مرګ وروسته دخټکو مشري هم کړېده او بیا له وطنه جلاشوی او مهاجر شوی دی، له دیوانه یې معلومیږي چه تر (۱۱۸۰ ه) پورې ژوندی و، علیخان ښه خوږ او ښاده کلام لري اشعار یې غالباً د رحمان په عشقي مکتب پورې اړه لري دا څو بیته دده دي،

| | |
|---|---|
| چه د تام بېهوده نه ګوري بې سوده | زوروردی په خاننو حساب نه دی |
| نه ښانۍ یې نیازه چه داهسې بې پرایې | هېردي شومه څه غرمي خبر په حال اره |
| څه خوزاشه نن دعشق دمړو په کلیو | ور ته وایه اې د هجر تیغ و ژلیو |
| چه دعشق دکنډکندن پیالې مونوش کړې | شهید ګی مو مبارک شه خدای ښېلیو |



حافظ رحمت خان

دپښتو دادب تاریخ - ۸۷ مخ

**کاظم خان شیدا:**

د علیخان وروردی، دخوشحال خان په کورنۍ کښې د ناز ګنخیالۍ استاد او د تخیل پیشوا او د ښکلې ادبي مقام خښتن بلل کیږي، ده خپل شعر په ډېرو ښکلو او رنګا رنګ خیالو نو ښایسته کړ، دخیال په دام کښې یې دهوا مرغان و نیول، د ښکلو سره و چغېد، د ښکلو تیا نو پشان دادت په ښکلو څو کو والوت، هرغزل او هر شعر یې ته به وا یې دښا پېریو د ملک تصویر دی په تشبیهاتو او استعاراتو کښې طوفان کوی، د کلام په نزاکت

او لطافت کښې د یو ډیر مهارت اری څکه ورته ادبی خلق د حمید بابا د ناز کخیالی د مکتب ملګری وایی، شیدا د عشق د دنیا سره کار لری، د عشق ګرمی او حرارت غواړی او له بی سوزه ژوندنه بیزار دی. شیدا دیو ډیر جوش دیوان (۱) خاوند دی ده هم لکه دخپل نیکه اشرفخان له وطنه لیری د یو ډیر شپې له دردوغم سره تیری کړی دی، تر (۱۱۹۱ هـ) پوری ژوندی و اوبیا په هند کښې مړشوی دی. کاظم خان یو با همته پښتون و، لوړ همتی یې له دی بیتو څخه معلو میږی.

سوال می خوی له درافشانه ابرونه دی
صدف ورانه خپله خوله کړه په غوښتلو
دآفتاب په کمندنه خېژم آسمان ته
نه زدم بار لکه شبنم په دوش دګلو

او س یې دا یو غزل وارلیء:

روغ به نه شم بې وصاله راشه کښینه
شه خبر زما له حاله راشه کښینه
آخر کړی دی قرارم سرشتا نو
دوحشت په خوی غزاله راشه کښینه
په مراد د عندلیب بی وفا ګله
جلوه ګر شوې بس له کاله راشه کښینه
زه آرام لکه بسمل په پرها ر مومم
له تا نه غواړم دسما له راشه کښینه
تل په دا خمو ابرو په شهلا ستر ګو
دخپل یار شام و هلاله راشه کښینه
چه ایام کړو سره یا د د بې غمی
یو ساعت زما همسا له راشه کښینه

نازکی دیار دطبع کړه موزو نه
ای شیدا نازکخیاله راشه کښینه

دشیدا په شعر کښې دفارسی ژبی اثر هم په معنی او هم په الفاظو او کلماتو کښې نسبتا زیات لیدل کیږی.

(۱) ددې دیوان هغه نسخه چه دشیدا په خپل مهروه در اورټی ګوتوله په لاهور کښې ورغلی وه او په برتش موزیم کښې خوندی ده، یوه نسخه یې چه په (۱۱۹۱) کښې لیکل شوی ده، داسلامی کالج په لایبریری کښې شته.

خوشحالخان شهید، دسعدالله زوی او دافضلخان نمسی دی، د پښتو ژبی شاعر او ادیب و ده څه وخت دختکو مشری هم کړې ده، یا داحمدشاه بابا دلښکر سره دمر هټا نو په جنګ کښې شهید شو دابیت ده دی:

تمام تن می و چ لرګی شو رګ مې تارور باندی پر یو وت
زیر وبم آواز ترې خیژی هیڅ حاجت درباب نه شته

## دحافظ رحمتخان کورنۍ

لکه چه څرګنده ده په پښتو کښې داسی ډیری کورنۍ تیرې شوې دی چه هغوی د پښتو ژبې ادب ته ډیر خدمت کړی او لوی نوم یې پرې ایښی دی لکه ډیر روښان اخون درویزه او خوشحال خان کورنۍ: په دی ډول دحافظ رحمتخان کورنۍ هم ددوولسمې پیړۍ یوه علمی او ادبی کورنۍ ده. چه دپښتو په لار کښې یې کوششونه کړی دی نو څکه دا کورنۍ هم وروسته ښودل غواړو.

حافظ رحمتخان: دشاه عالم خان زوی دی. دوی په اصل کښې دقندهار دپښو راوک بړیڅان دی مګر په هند کښې یې استوګنه درلوده او دی هلته دروهیل کهند حکمران و. حافظ

رحمت خان داحمد شاه بابا معاصردی له هغه سره يې په هند کښې ډېر کومکونه کړي دي اودهغه رښتين ملګری و . دی بيا په (۱۱۸۸ هـ) کال په يوه جنګ کښې شهيد او په (بريلۍ) کښې ښخ شو . حافظ رحمت خان يو عالم ديندار ، اديب شاعر مورخ اوليکوال و . وايي چه ده يوه لويه کتابخانه درلوده چه اکثر کتابونه يې پښتو وو . ده دپښتو او فارسي اشعار ويو ديوان هم لاره . دار مستيټر وايي «چه ماته په رامپور کښې يوه پښتانه دپښتو اشعارو يو مجموعه راکړه چه دحافظ رحمت خان اونورو پښتنو سردارانو اشعار په کښې وو اودغه مجموعه اوس دبرټش په موزيم کښې خوندي ده» دحافظ رحمت خان يو مخمس دعبد القادر خټک په يو قلمي ديوان کښې هم ليدل شوی دی چه دغه ديوان هم دبرطانيه په موزيم کښې دی ده په تاريخ کښې هم دوه کتابونه ليکلي دي - تواريخ رحمت خاني ۲- خلاصة الانساب (۱) دادواړه کتابونه په فارسي دي اودپښتنو تاريخي احوال په کښې بيان شوي دي .

نواب محبت خان : دحافظ رحمت خان زوی دی ، يو عالم سړی و، په عربي، اردو، فارسي او پښتو ژبو کښې يې اشعار درلودل ، وايي چه په سنسکريت هم پوهيده او په فارسي کښې هم ځيني تاليفات لري . ده په پښتو کښې په (۱۲۲۱ هـ) د«رياض المحبت» په نامه يو خورا مهم کتاب ليکلی دی . دا کتاب دپښتو يو مهم لغت دی اودافعالو ګردانونه هم لري (۲) راورټي انګريز ليکلي دي چه دا کتاب دپښتو يو لغوي او ګرامري کتاب دی لمړی باب يې دپښتو افعالو تصريفات دي ، دوهمه برخه يې دپښتو لغات دي چه معاني يې په فارسي ليکل شوي دي محبت خان په (۱۲۲۵ هـ) کښې وفات شوی دی .

الله يار خان : داسړی دحافظ رحمت خان زوی دی . وايي چه ده هم په (۱۲۲۸ هـ) دپښتو يو لغت ليکلی دی چه «عجايب اللغات» نوميږي دا کتاب دراورټي ګوته ورغلی وو او نسخه يې په برټش موزيم کښې موجوده ده دې کتاب په مقدمه کښې دپښتو ځيني قواعد هم شته وايي (۳) چه دا کتاب دپښتو ، هندوستاني فارسي اوعربي لغاتو مجموعه ده . الله يار خان په (۱۲۴۸ هـ) کال وفات شوی دی .

نواب مستجاب خان : دحافظ رحمت خان زوی دی دخپل پلار پشان عالم او پوه سړی و په عربي پارسو او پښتو کښې ليکوال اومورخ دی .

ده د«ګلستان رحمت» په نامه يو تاريخي کتاب ليکلی دی چه دخپل پلار دژوندانه اودهند دپښتنو حالات يې په کښې بيان کړي دي . وايي چه دی دپښتو شاعر هم و ،

سعادت يار : دحافظ رحمت خان نمسی دی ، دپلار نوم يې محمد يار ودی هم ليکوال ښکي اومورخ دی د (۱۲۴۹ هـ) په حدودو کښې يې د«ګل رحمت» په نامه په فارسي ژبه دپښتو دکورنۍ اودهند دپښتنو په حالاتو کښې يو کتاب ليکلی دی .

نياز احمد هوش : داسړی هم ددې کورنۍ يو مورخ ليکوال دی دحافظ رحمت خان کړوسی و ډېر تاليفات لري ، دپښتنو په تاريخ کښې يې «دروهيل کنډ» تاريخ کښلی دی دی د (۱۲۵۰ هـ) په حدود کښې ژوندی و .

---

(۱) ددې کتاب يوه نسخه په پښتو ټولنه کښې شته (۲) د۱۳۲۲ کالنۍ مخ ۱۶۹

(۳) فهرست بلومهارت

نو معلومه شوه چه حافظ رحمت خان او دده کورنۍ هم د پښتو ژبې په خدمت کښې پوره برخه لري، دوی اکثره د پښتو ژبې شاعران او ادیبان وو؛

په تیره د نواب محبت خان ریاض المحبت او دالله یارخان «عجایب اللغات» چه د پښتو او مړني قاموسونه دي په پښتو کښې ډیر قیمتي او غوره آثار ګڼل کیږي او د ادبي ژبې د ژوندانه د پاره پوستر خدمت دی.

## (ددې دورې نور شاعران او لیکوال)

امیر محمد انصاري (۱): داسړی تقریباً د (۱۲۰۰ هـ) په حدودو د هند په (کلکته) کښې اوسیده پلاریې میر محمد نومیده. ده د سعدي ګلستان په (۱۲۲۷ هـ) کال په دغه ځای کښې په پښتو نثر ترجمه کړی دی، ددې پښتو ګلستان یوه نسخه چه (۱۲۹) پاڼې ده، دلندن په موزیم کښې شته ده د کتاب د سر یو څو جملې دادي (همه وایه ثنا و صفت او کل احسان و منت د دغه اوی قادر څښتن تعالی لره چه طاعت یې سبب د قربت دی، او دده په شکر کښې زیاتي د نعمت. هر یوه ساه چه په ښکته درومي او زدو ونې د حیات ده او هر کله چه په پورته راشي خوشحالو ونې د ذات یعني د ځان ده پس په هره یوه ساکښې دوه نعمتونه موجود دي او په هر نعمت یې شکر واجب) ددې سړي نور حالات ښه نه دي معلوم، مګر ویلای شو چه دده ترجمه یې ښه او غوره ده او دی د پښتو په ترجمه کونکو او نثر لیکونکو کښې ښه درجه لري.

عبدالکریم کاکړ، د قندهار له عالمانو څخه و، په عربي علومو کښې یې مهارت درلود د پښتو ژبې شاعر ګڼل کیږي ځکه چه عربي عین العلم یې د «زین العلم» په نامه یو کال له مرګه وړاندې په (۱۲۳۴ هـ) کښې په پښتو نظم رااړولی دی، دی پرته له دغه کتاب نه نوري بدلې هم لري دا بیتونه دده دي:

د ښه خوی ګټه ده ډیره — له ګټه لو ترانده تیره
هغه څوک چه اخلاقي وي — د هغه نوم په باقي وي
د اسلام خو ښه اخلاق دي — چه په درست ادیانو طاق دي
په خو یو انسان انسان دی — که نه، دی خاتش حیوان دی

محمود رفیق، د پښتو ژبې شاعر او په عربي او هندي ژبو یوه و، د (۱۱۸۵ هـ) په شاوخوا کښې یې د علم تجوید په بیان کښې یو کتاب په لنډه پښتو مثنوي له هندي نه ترجمه کړی دی د کلام نمونه یې په اول جلد پښتانه شعرا کښې راغلي ده.

دالپوری حافظ: الپوری د سوات د ریاست د کانړا او غوربند په علاقه کښې یو کلی دی، حافظ د دغه کلي و. حافظ که څه هم په سترګو معذور و مګر د پښتو ژبې یو مشهور شاعر تېر و خوت، ده د (۱۲۰۰ هـ) په شاوخوا کښې ژوند کاوه او د شاه زمان تر وخته پوري ژوندی و، له حافظ څخه یو ښه دیوان (۲) یادګار پاتې دی دا دیوان پند او نصیحت، د توحید بیان او ځینې عشقي او تصوفي برخې لري، د حافظ ژوند هم لکه د رحمان بابا صوفیانه او ګوښه ګیری ژوند، دی د معنی په لحاظ د رحمان بابا د روحاني او الهامي دبستان پیروي مګر د لفظ په لحاظ ځانله طرز لري ځکه ده په اوږدو بحرو کښې اکثر

---

(۱) فهرست بلومهارت. (۲) دیوان یې په پېښور کښې چاپ شوی دی.

اشعار ویلي دي اشعار یې خوندور اوله جوشه ډک دي، حافظ په عوامو کښې هم ښه شهرت لري او اشعار یې دخلقو په یاد دي هو! فارسي او عربي کلمات ئې په شعر کښې ډېر لیدل کېږي مګر سره ددې یې هم رواني او سلاست له لاسه نه دی ورکړی، دا بیتونه یې ویلي دي.

برګ میوه مې توی شو ډیری خزان لغړ کړم ‍ ‍ تېر لکه پر ښېښنا شوې دځواني اردي بهشته

سود سودا هغه کا چه بازار له بها یوسي ‍ ‍ ته په دست خالي په بازار کښې ولې یا خه شته

عشق: زه نایب یم دمجنون په عاشقۍ کښې ‍ ‍ خلیفه دقارون نه یم چه مال غواړم

پند: خوی دچار پایانو کړې جوسه دې دسړو ده ‍ ‍ شین ډکې چه وینې له کړ نګه پسې رغړی

۴۴ قاسم علي افریدی: په اصل اپریدی آدم خیل دی، ده دې کورني داورنګ زیب په زمانه کښې هندته تللې وه اودې هم هلته په فرخ آباد کښې زېږېدلی دی، راورټي لیکلي دي چه قاسم علي په عربي، تورکي، پارسي، کشمیري او هندي ژبو پوهېده او انګریزي یې هم لږه زده وه انګریزان دده په ژوندانه هندته راغلي دي لکه چه وايي:

نصارا په هندوستان حکومت کاندي ‍ ‍ چېرته ولاړ هغه ځوانان شمشیر زنګي

دقاسم علي یو قلمي دیوان چه ایدل شوېدی تر پنځه زره بیته رسېږي، قصیدې او چار بیتې هم لري او په (۱۲۳۱ه) کښې تمام شوېدی. دده اشعار په عشقي، اخلاقي او تصوفي خواو کښې ویل شوېدي، دی پوخ او متین کلام لري ده په یو شعر کښې ځینې پښتاني شاعران یاد کړي دي او ځان دهغو دپښتو خاوري ګڼي دا بیت دده دی:

که چغار دعندلیب پشان کړم ‍ ‍ افریدی یم په ګلزار دتورو زلفو

قاسم علي یو کلیات (۱) لري چه په پنځو کتابو شامل دی ۱ ـ تزک افریدی ـ په دې کښې یې په فارسي دخپل خاندان حال لیکلی دی ۲ ـ دیوان افریدی په پښتو ژبه ۳ ـ دیوان افریدی په اردو ژبه ٤ ـ قصاید افریدی په فارسي او پښتو کښې دخومدحیو مجموعه ده ورسره په پښتو یوه خوابنامه هم شته ۵ ـ فرهنګ افریدی په دې فرهنګ کښې دفارسي مصدرونو او لغاتو په مقابل کښې په پښتو، اردو، کشمیري او انګریزي مرادف لیکل شوېدي داسې معلومېږي چه دا فرهنګ په خپل وخت کښې یو ښې جوړ فرهنګ و.

۴۵ ملا فرح الدین: په اصل کښې عرب دی چه په قندهار کښې اوسېده چه بیا په (۱۲٤۱ه) کال هم دغلته وفات شو. دی دمیا فقیرالله صاحب مریدو، ډېر شاګردان او مریدان یې درلودل، زاهد، عالم او پرهیز ګار سړی و، دی په اخلاقو او تصوف کښې د«تعدادالکبایر» په نامه یو کتاب لري، چه دپښتو په لنډ بحر یوه مثنوي ده او دا هغه ـ سبک دی چه له پخوا څخه دمذهبي آثارو دپاره رواج شوېدی یو دوه بیته یې دا دي:

شفقت پر مسلمان کړه ‍ ‍ له هر چا سره احسان کړه

په شادي دده ښادمن شه ‍ ‍ هم په غم دده غمجن شه

خواجه رزق الله: داسړی دپښتو دملي شاعرانو په ډله کښې درېږي، ډېرې چستې او خوږې چار بیتې لري، په شعر کښې یې نازکخیالي هم شته، دننګرهار دچپرهار په (کلاشیخ)

(۱) ددې کلیات یوه نسخه چه په سنه (۱۲۳۰ه) کښې لیکل شوې او پخپله دمنصف مهرونه هم پرې لګېدلي دي، دپېښور داسلامي کالج په کتابخانه کښې موجود ده

نومی کلی کښې زیږېدلی دی، رزق الله یو ګرزند سړی و، دهند، کشمیر، قندهار او بخارا سفرونه یې کړیدی وایي چه دیوان یې درلود (۲) مګر نسخې یې کمې دی، ده عشقي او وطني اشعار ویلي دی، شعر یې پوخ او استادانه دی، دوطن په یاد کښې وایي!

خوار غریب او بې نوا وی … خو وطنه ستا په خوا وی

دپښتو او غیرت په خوا کښې هم ښه احساسات لري وایي:

د بلا غشي می خیږي اه پښتو … زه خواجه رزق الله نه پرېږدم پښتو

چه خبر شوم له حملې دکم غلیمه … دغیرت خولې می څاڅي له و پښتو

عبدالعظیم رانی‌زی: دسوات دسردرو یو خوږژبی شاعردی، په (۱۱۶۷ ه) کښې پیدا او تر (۱۲۵۳ ه) پورې ژوندو، دعظیم استوګنه دپېښور په «برتاکال» کښې وچه ددښمنانو دلاسه جلاوطن شوی و، ده دخپل وخت مروج علوم لوستلي وو او یو عالم سړی و، د طریقې په سلسله کښې هم داخل او دکونړ د «میربابا نصاحب» مریدو هغه وخت چه ده دخپلو وګړو زامنو دمرګ غشي په زړه وخوړ، نوله هغه درده دده دشعر چینه راوخوټېده او بس له هغه یې په خوږو خوږو او پرسوزو اشعارو لاس پورې کړ چه اوس ورنه یو ډېر وړوکی دیوان یادګار پاته دی. دی ساده او روان شعر لري په عشق، سلوک، پند او نصیحت او دزمانو په بیلتون کښې یې ویل کړي دی، رحمان بابا ته ډېر عقیده لري او دهغه دادبي مکتب پیروي یې کړې ده دی یو تنقیدي نظر هم لري لکه چه وایي:

کاته پرېږي تا به وډ که که څه ور کړي … ملایان کوي په چرګ یا حلوا صلاح

هر سړی کړي رعایت دزور ورو … باري قه کړي دعا جزو رعایت څوک

داو ښکو په تصویر کښې وایي:

دادرنه دي چه په مخ زما بهیږي … دا زماد سپینو او ښو سلسله ده

امام الدین: د (۱۲۰۰ ه) په حدودو کښې ژوندی و، یو قصه یې د «جمجمه» په نامه نظم کړېده داقصه یو خیالي داستان دی چه لیکوونکي یې دقصه کوونکو په ډله کښې حسابیږي داقصه په لنډه بحر کښې یوه پښتو مثنوي ده.

ملاحسن اسحق‌زی: داسړی یو ښه پرسوز شاعرو، دقندهار په (تلوکان) نومی کلي کښې وزیږید، دعلوموڈ تحصیل نه وروسته پرېیو نوی حالت راغي، دعشق او مینې په دنیا کښې داخل او دغه جذبات یې دشعر په لباس کښې ښکاره کړل، دده اشعار دده دسوی او دردمن زړه کتیرې او له سوز او ګدازه ډک دی او دقلندر او حمید د مکتب سره نژدې دی. دی په پښتو کښې یو کامل دیوان لري، نور تالیفات یې هم کړي دی، یوه رباعي یې داده.

یاره چه ته یې په هغه لوري … غم خو دنوی ښادی دی او ري

دمخ رېښنا دې یووار ښکاره که … چه ښه جمال دې خوران و ګوري

بل ځای وایي:

دروغو زړو نو ژړا محال ده … په ژړا ژاړي وېشتلی زړونـه

ملاحسن په (۱۲۴۵ ه) کښې وفات شوی دی.

(۲) او رېدلي مې دي چه دچیره دباراندې داسلام نومې سړي سره یې دیوان شته.

صالح محمد داوی : د قندهار یو پرهیزګار عالم دی، د میا نور محمد (پوتی میا) مرید او د ملا حسن معاصر و ده یو دیوان هم درلود چه اکثره د رسول الله (ص) د نعت او حمد بیان دی.

کو د یزی : د پښتو یو شاعر دی چه د تیمور شاه سدوزی په عصر کښی ژوندی و او د «جلات او محبوبا» قصه ئی په (۱۱۸۸هـ) د پښتو په لنډه مثنوی نظم کړیده د احمدشاه په مرګ وایی :

دور تیر د شاه دران شو | درست پښتون یی په ارمان شو

ملا ولیدا د کاکړ! یو عالم او شاعر سړی ؤ چه په قندهار کښی اوسیده په (۱۲۲۴هـ) کال ئی د (زین الحلم) په نامه د پښتو په لنډه مثنوی یو کتاب لیکلی دی چه د عربی عین العلم ترجمه ده او مضامین ئی دینی او اخلاقی دی وایی :

فرض د علم زده کول دی | ضرو ری ئی هم لوستل دی

شیخ احمد : د لغمان د زیارت په کلی کښی اوسیده. بیا د تیمور شاه په عصر کښی وفات شو : دی په پښتو ژبه کښی په ملی وزن ښه خوازه اشعار لری وایی چه د قرآن عظیم تفسیر ئی هم په پښتو نظم کړی ؤ مګر اوس نه پیدا کیږی د ده یو بدلی یو دوه بندئی دادی :

کمیس ئی شین اغوستی شنه لسکه کوتره ګرځی | په شنه جلګه راغله له یاره سره او تره کرځی
دخندا د که خوله دا ښکلی نازپروره ګرځی | یوئی شین خال دی، نښداری ئی د جبین کړمه
زه شین طوطی یم د تیرا په شنو کمرو ګرځم | په شنو بڼو د سبا د حسن د لاوره ګرځم
کله چمن کښی کله هسک په دي نښتر وګرځم | شینکی تو کیږی سیل بیا دشنه اوبین کړمه

رحمت داوی : له قندهاره کشمیر ته تللی و او هلته د سردار عبدالله خان سره نوکر ؤ، د ده ژوندتر (۱۲۱۰هـ) پوری معلوم دی د پښتو ژبی په ښو شاعرانو کښی حسابیږی، وائی چه د شعر دیوان ئی درلود مګر ورک دی دلیلی او مجنون کتاب ئی د شاه زمان په وخت د هغه په نامه د پښتو په لنډه مثنوی نظم کړی دی دا کتاب د نظامی ګنجوی د لیلی او مجنون ترجمه ده او په دی بیتو شروع شوی دی :

غمو ملک را باندی تنګ شو | زړه می ځکه د آهنګ کړ
چه پښتو لیلی مجنون کړم | ښائی غم له زړه بیرون کړم
سلطنت د شاه زمان دی | دی خاقان ابن الخاقان دی
پلار نیکه ئی یاد شاهان وو | دو په تاج دهر افغان وو
شکر شکر شاه زمان | غنیمت دی دا زمان

میا نعیم متی زی : په کام خلیل مهمند دی، په نهم پښت شیخ متی (کلات بابا) ته رسیږی نیکو نه ئی ټول لیکونکی، شاعران او عالمان تیر شوی دی په پېښور کښی زیږیدلی او اوی شوی دی له یوه بینه ئی د شاه زمان همعصری معلومیږی خو خپل دیوان ئی په (۱۲۳۰هـ) کښی ختم کړی دی دی بیا قندهار ته ولاړ چه اولاده ئی تر هوسه هلته اوسیږی، د ده اشعار عشقی او توصیفی دی او د رحمان بابا په مکتب پوری اړه لری. دا بیتو نه د ده دی.

زه مین ستا په دیدار نه یم نوخه یم | دوصال دی طلبګار نه یم نوخه یم
ستاد سرولبو له خیاله داغ په زړه کښی | رنګ په وینو لاله زار نه یم نوخه یم
په ژړا می هیڅ پروا د ښکلیو نشی | په باران د باغ ګلونه شی سمسورلا

عبد النبي بیټنی : د۱۳ پیړی په اولو وختو کښې ئې ژوند کاوه دقندهار (دذاکر) په کلی کښې اوسیده . یوعارف اونیك سړی ؤ داشعارو یو دیوان ئې درلود اودرحمان بابا له پیروانو څخه دی دمتصو فینو شاعرانو په ډله کښې دریږی په عشق کښې ئې دتصوف پاڅه اصطلاحات لیدل کیږی لکه چه وایی :

چه می خپله هستی ور که کړه په عشق کښې | دعشق بوی می نمایان له پوست وهډه
راشه وګوره دناصوت له سرایه کډه | بیا پسته شها و ګوره دې بهره
بل ځای وایی : ردوهه له ملنګانو سره راز کا | په محراب کښې له زهادو دی همدم

ملا زبردست کاکړ : یوعالم او پرهیز ګار سړی ؤ اودقندهار په ښاوخوا کښې اوسیده ، ده په (۱۲۲۶هـ) کښې د پښتو په نظم «روضة النعیم» کتاب لیکلی دی ، مضامین ئې دینی اومذهبی دی ، ددې کتاب شعر دنثر او پیتو مثنوی ده ، لکه چه وایی :

څوك چه ظلم پرچا وکړی | کـله ظلم څوك پرده کړی
چه بد نه کړی بدنه مومی | نیکان کـله بدی مومی

ګل محمد : په قام نورزی دی ، دهلمند په غاړو په (مالګیز) نومی کلی کښې اوسیده دشاه زمان ترعصره ژوندی ؤ ، دی دعشقی اشعارو یو دیوان لری په طالب العلمی کښې عاشق شوی او بیا شاعر شوی دی ، عاشقانه احساسات پې ډیر تیز دی درحمان او پیر محمد دسلسلې تابع دی داربا عی دده ده :

مسافر را غلم سبا به ځمه | سیر دګلانو دبهار کړمه
طبعه می خدای کړه دبلبلانو | تل په سرو ګلوناري وهمه
دیار دورانیدو په وخت کښې وایی :
آزمار وح روانه له مامه ځه | زمازده زما چشمانه له مامه ځه

معین الدین : داسړی د(۱۲۵٦هـ) دوختو شاعر دی چه د پینورد (چارسدی) په ښاو خوا کښې پې استو ګـنه کوله . ده په دغه پورته کال کښې د«عذرا او امق» قصه له فارسي څخه په پښتو ترجمه کړی ده ، دا کـتاب (۹۳) مخه دی او یو نسخه یې دلندن په موزیم کښې شته (۱) دکـتاب پیل :

دا آغاز می په نامه دپاك خالق دی | چه په عشق یې دعذرا سوی وامق دی
شنی مانی یې په هوا کړی آویزاندی | یو دبل په سرولاړی لاندی باندی
چه قدرت یې دمخلوق په بهبود راغی | له پردی دعدم ځکه وجود راغی

معین الدین په پښتو کښې یو دیوان هم درلود . ځکه چه دده ددیوان (۵۰) مخه (حسیب ګـل) (۲) په خپل بیاض کښې انتخاب کړی دی .

عبد الرسول : دقندهار په (ماشور) نومی کلی کښې زیږیدلی دی په ختته نورزی او تیمور شاه په وخت کښې ژوندی و . دی دزلمیتوب په وخت کښې کشمیرته ولاړ او هلته اوسیده ده دخپل سفر دحالاتو په باب کښې یوه (سفرنامه) لیکلی ده بل کـتاب ئې (آزادنامه) نومیږی کوم وخت چه آزادخان دکشمیر حاکم ، له تیمورشاه نه یاغی شو او په منځ کښې یې جګړی وشوې نو ده په دې

(۱) فهرست بلومهارت (۲) دحسیب ګـل بیان به وروسته راشي .

باره کښې دغه رساله ولیکله عبدالرسول په اردو او کشمیري ژبو لبزلبز پوهیده، په پښتو کښې یو دوان (۳) هم لري، عشقي او تصوفي اشعار یې ویلي دي دده داشعارو نمونه په دوهم جلد پښتانه شعرا کښې راغلې ده.

مطیع الله: په کام پیرخیل دي دا باسیند په دې غاړه او سیده د شجاع الملك تر وخته (۱۲۵۰ هـ) پورې یې ژوند معلوم دي مطیع الله دعشق او مینې په اورستی وه ډېر سوزناك او غمجن اشعار یې ویلي دي، اشعار خوندور او سلیس دي دی رحمان بابا عقیدتمن او دهغه دعشقي او تصوفي مکتب شاګرد دی دشعر یو دیوان (٤) یې یادګار پرې ایښې دی ده دپخوانو مشهورو شاعرانو په پیروی کښې خواږه شعرونه ویلي دي، دده په دیوان کښې اخلاقي، اجتماعي مناجات، مدح مرثیه او ځینې تاریخي مضامین هم شته خپل دیوان د مهر ویانو دپاره یوه تحفه بولي. مطیع الله په یو ځای کښې دعمل او کار تبلیغ په خومره ښه صورت کوي.

په قصو مطلب مونده نشي پسې پاخه      له ګفتاره چا کردار مونده لی نه دی

مطیع الله ښه چستي غزلي هم لري یو ښو بیته یې دادي:

مینه دخوبانو نام ننګ لیري کوي      تش دیدن دښکلیو دزړه زنګ لري کوي

ما په خوب کښې ځان ملنګ لیدلی دی      دزړه رخت می په عشق رنګ ایدلی دی

اوس له ویرې په کوڅه ورتللی نشم      مادمستو سترګو جنګ لیدلی دی

شمس الدین کاکړ: دقندهار په کلچا آباد کښې زوکړی او لوی شوی دی. دسوز او درد خاوند و ډېره موده ئی له وطنه بهر په هند کښې تېره کړې ده د وطن په یادونې خواږه خواږه اشعار ویلي دي، شمس الدین دخپلو اشعارو دیوان په (۱۲۳۸ هـ) کښې ختم کړی دی، دده اشعار عشقي او تصوفي دي او شعري صنایع هم لري، شمس الدین د (سراج الموتی) په نامه یو بل کتاب هم کښلی دی چه د پښتو په نیم منظوم نثر دی او دفقهي او دیني مسئلو بیان کوي دارباعي یې ولولی:

دخدای دپاره زما حبیبه      در نځو رانو درنځ طبیبه

زیاتې می تر حده دهجر رنځ شو      لبز خبر و اخله له ما غریبه

ګل محمد کاکړ: دقندهار یو عالم او زاهد سړی و د (شمس العابدین) په نامه ئی په پښتو کښې یو کتاب لیکلی دی، اخلاقي او متصوف شاعر دی په پښتو کښې ځینې بدلې هم لري دا بیت دده دی:

که شیدا نه یم دلبره راته وایه      دادا وښو دریابو نه دی پرښه؟

ملاجمعه بارکزی: دقندهار د (زوړ ماشور) په کلي کښې اوسېده، یو پوهیز کار او دبندار سړی و، یو دیوان ورنه یادګار پاته شوی دی، اشعار ئی عشقي او صوفیانه دي درحمان بابا په مکتب پورې اړه لري میرزا حنان وایي چه دی په شاعری کښې استاد و ملاجمعه په (۱۲۵۹ هـ) کال چه حج ته تللی و په مکه شریفه کښې وفات او هلته ښخ دی، دا بیتونه دده دي:

که دي واغوته د ګلو کړې نسیم ئی      پرې ناري دې د بلبلو کړی نسیم ئی

که دې پوری د زړه وینې د مینو      د خوبانو په منګلو کړی نسیم ئی

---

(۳) په قندهار کښې دعبدالشکور رشاد سره ئې یوه قلمي نسخه شته (٤) یوه قلمي نسخه ئې په پښتو ټولنه کښې شته.

عزیزخان رڼاخیل : عزیزخان دسدوزو دپاچاهی په آخر کښې ژوندی او د هرات په ملی جنګو کښې چه دشاهزاده کامران اووزیر یارمحمد خان په مشری سره کېدل : شامل ؤ دی دپښتو رزمی شاعردی ، چه ددغی جګړې تاریخ ئی په نظم لیکلی دی ، په شعر کښې یې د توریالیتوب اومېړانی احساسات څرګندېدی لکه چه وایی :

| | |
|---|---|
| پاس په هرات دوېر ناری دی | څښلی دی بیا آسمانه سری دی |
| میدان یې اور کړ په غجر باندی | یار محمد زغ کړ په لښکر باندی |
| ته ئی په ځان زمونږ له خپله کوره | کامران وې راشه یارمحمده وروره |
| ورځ ده ، ساتنه دوطن بویه | مونږ ته یا فتحه یا کفن بویه |

سپینه . دایوه پښتنه میرمن ده چه د کامران شهزاده په وخت د هرات په شاوخوا کښې اوسېدله دنور محمد الکوزی لوراود پښتو شاعره وه : هغه وخت چه ایرانیانو په (۱۲۵۵ ه) هرات کلابند کړ اود هرات پښتنو د مېړانی مقابله وکړه او هرات ئی په توره ټینګ وساته نودې پښتنی دغه واقعات یعنی د هرات د کلابندی حال اود پښتنو توره اومیړانه ټول په نظم کړل اویوه جنګی قصه یې ولیکله چه له کلماتو او اشعارو څخه یې د پښتنو جنګی روح او جوش ښه څرګندیږی ددغی قصی یو څو بیته دادی .

| | |
|---|---|
| ددښمن سترګی له بریښنا وې ړندی | د پښتنو توری په قتل ځلیدی |
| پرننګه ټینګ وو دوطن ننګیالی | دوی وو مېړونه پښتانه توریالی |
| دلته خپره وه هو سایی خوشحالی | د هرات خواوه له غلیمه خالی |

## ددی دوری هغه شاعران چه د کلام نمونی ئی نه دی لیدل شوی

کریم خان : قاسم علی په یوه قصیده کښې دشاعرانو په ډله کښې راوړی دی لکه چه وایی ، (ګه نواب محبت خان که کریم خان و) مګرنور معلومات ئی نشته .

مهرعلی داسړی هم قاسم علی دشاعرانو په ډله کښې ذکر کړی دی وایی :

(مهرعلی ، عبدالقادر که سکندرو) نوریته ئی نه لګی چه څوك و ؟

مشرف : داشاعر مونږ دعلیخان خټك له خوا پیژنو لکه چه وایی :

| | |
|---|---|
| ګرچه شرف دی د مشرف و په تقریر کښې | فضل دغفور په علیخان د شعر و شه |

له دې نه یود مشرف شاعری اوبل ئی د تقریر ښه والی معلومیږی .

باقرشاه : ددې شاعر پته دمطیع الله له قلمی دیوانه لګیږی ، هلته دیو غزل دپاسه لیکل شوی دی چه (داد باقر شاه دغزل عکس دی) نومعلومیږی چه دغه لیکونکی د باقرشاه غزل او اشعار لیدلی وو ،

انور : دمیطع الله معاصردی ، اوده ئی په یوه شعر کښې نوم اخستی دی .

قنبر : دی هم دمطیع الله له یادونی څخه پیژنو لکه چه وایی ،

| | |
|---|---|
| مطیع الله شکل رابع شه له نقا چه | دانور د قنبر شعر به باطل که |

عظیم : داشاعر دعبدالعظیم رانی زی همزمانه دی په خپله عبدالعظیم وایی :

| | |
|---|---|
| په نامه کښې دی شریك له ما ګدایه | بل عظیم دی په وطن د اشنغر کښې |
| دی خواره په طالبانو کښې هر ځایه | ده ساز کړی دی په شمار یو څو غزله |

فیض محمد : دعبدالقادر خټك دیوان یوه نسخه کښې ددې شاعر یو غزل انتخاب شوی دی دغه نسخه د لندن په موزیم کښې موجوده ده او تقریباً د (۱۲۰۰ ھ) په حدودو کښې لیکل شوی ده،

فقیر افضل : دده یو غزل په دغه نسخه کښې انتخاب شوی دی .

نواب علی محمد خان : دده یو غزل په دغه نسخه کښې لیکل شوی دی ، دی د حافظ رحمت خان یو علمی او ادبی ملګری و . او په (۱۱۶۲ ھ) کښې وفات شوی دی (۱)

مسکین : دا شاعر هم په دغه نسخه کښې یو غزل لری . دا څلور روستی شاعران ددې دوری شاعران دی مګر اشعار یې ندی لیدل شوی .

## ۴ ددې دورې تاریخی کتابونه

محمود نامه : دحاجی میرویس او شاه محمود هوتك د جګړو په بیان کښې ریدی خان مهمند د شاه حسین په وخت د پښتو په نظم لیکلې ده .

پټه خزانه : محمد هوتك د شاه حسین په وخت د پښتو شاعرانو په حالاتو کښې په پښتو نثر لیکلې ده .

د محمد رسول هوتك بیاض : دا کتاب د محمد هوتك لاس ته ورغلی و او په پټه خزانه کښې ئې د بیاض نه معلومات ورڅخه رانقل کړی دی ددې بیاض لیکونکی محمد رسول هوتك یو ښه لیکوال و د ژوندانه حال یې نور معلوم نه دی مګر د حاجی میرویس معاصر معلومیږی .

د پښتنو نسب نامه : میاعمر صاحب د احمدشاه بابا په زمانه کښې د پښتو په نظم لیکلې ده .

تاریخ مرصع : ددې دورې یو مشهور ادبی شاهکار دی چه افضل خان خټك د پښتو په نثر لیکلی او د پښتنو تاریخ دی .

تذکرة الملوك : دا کتاب په پښتو ژبه د سدوزو په تاریخ کښې لیکل شوی دی په پښتو کښې یو ډیر قیمتی او غنیمت کتاب دی او غالباً د تالیف وخت یې د تیمور شاه زمانه ده ، مګر نسخې یې هیڅ نه پیدا کیږی مستر راورټی ته یې یوه نسخه په لاس ورغلې وه مګر معلومه نه ده چه د لندن په موزیم کښې به وی او که نه ؟ دا کتاب اته جلده او ۶۴۷ مخه و دوه برخې واقعات یې هغه دی چه له احمدشاه څخه وروسته پیش شوی دی .

صولت افغانی : دا کتاب زرداد خان په (۱۱۸۷ ھ) د پښتو په تاریخ کښې لیکلی دی نور معلومات یې نه لرو (۱) ددې دورې نور تاریخی کتابونه چه د حافظ رحمت خان په کورنی پورې تعلق لری دا دی : (خلاصة الانساب) د حافظ رحمت خان ـ ګلستان رحمت . د مستجاب خان ـ ګل رحمت د سعادت یار ، او داسې نور .

تواریخ حافظ رحمت خان : دا کتاب پیر معظم شاه د حافظ رحمت خان په هدایت په (۱۱۸۱ ھ) کښې لیکلی دی ، دا کتاب د پښتنو د مهاجرتو نو او جګړو او نورو حالاتو بیان کوی پیر معظم شاه د پیر محمد فاضل زوی و چه د پېښور د پیر سباك کلی مشر او د حافظ رحمت خان له نفر یو څخه و (۲)

---

(۱) د ۱۳۲۲ کالنۍ .

(۱) ددې کتاب یوه نسخه په خټکو کښې د محمد زمان خان سره موجوده ده .

(۲) فهرست بلو مهارت .

## ددې دورې پښتانه پاچاهان

لکه چه معلومه شوه، د پښتو دادب د تاریخ په دې دوهمه دوره کښې هم ډېر مشهور پښتانه پادشاهان تېر شوي دي، چه د پښتو دادب سره یې مینه اړله او د دوی په توجه د پښتو ادب څه نه څه پر مخ تللی دی، نو دادي وروسته یادیږي:

هوتکو کورنۍ: د دولسمې هجري پیړۍ په سر کښې چه د پښتنو کومې کورنۍ پادشاهي کړې ده، هغه د هوتکو کورنۍ ده: دادا سې وخت و، چه یو طرف ته په ایران کښې د صفویانو پادشاهي وه او بل طرف ته په هند کښې کورګانیانو پادشاهي کوله ایرانیانو د افغانستان غربي خواته لاسونه



حاجي میرویس

د پښتو دادب تاریخ ۹۸ مخ

را اوږد کړي او ځینې ولایتونه یې نیولي وو، په دغه وخت کښې ګرګین نامي یو سړی د ایران د پاچا له خوا په قندهار کښې والي و، دا سړی ډېر ظالم او بې تدبیره و، د پښتنو سره به یې ښه چلند نه کاوه نو پښتنو ته دا حالت سخت و بریښید او د حاجي میرویس هوتك په مشرۍ یې د ګرګین خان په خلاف د آزادۍ بیرغ پورته کړ ګرګین خان یې د خپل ډېر لښکر سره وواژه او وطن یې ورنه آزاد کړ بیا پښتنو په (۱۱۲۱ه) حاجي میرویس په خپله مشرۍ ومانه. ده هم یو ملي حکومت جوړ کړ او په ښه صورت یې دا حکومت وچلاوه، کم وخت چه دی په (۱۱۲۷ه) کښې وفات شو نو ورور یې عبد العزیز پر ځای پادشاه شو، مګر بیا د حاجي میرویس زوی شاه محمود د خپل تره (۱) څخه حکومت واخست او په (۱۱۳۱ه) کښې په تخت کښېناست. شاه محمود په خپل وخت کښې ایران ته لښکر کشي وکړه او د ایران مرکز اصفهان یې ونیو څه موده یې په ایران پاچاهي وکړه بیا چه دی مړ شو، نو د کاکا زوی شاه اشرف یې پر ځای په (۱۱۳۸ه) پاچا شو او تر (۱۱۴۲ه) پورې هم هلته پاچا و، په دغه وخت کښې

(۱) په خزانه لیکي چه عبد العزیز د شپې د نارنج د قصر له بامه رالولوېد او مړ شو ویس له ده محمود پاچا شو،

شاه‌حسین دشاه‌محمود کشر ورور په‌قندهار کښې پاچاهي کوله، چه د ده پادشاهي له (۱۱۳۵ه)څخه تر (۱۱۵۰ه) پورې چلېدلې ده اوتر ډېر جاته‌پوري وطنونه يې په لاس کښې وو بیا په(۱۱۵۱ه) کښې چه‌نادر شاه افشار قندهار ونیو دی يې مازندران ته جلاوطن کړ اویو کال‌پس بیاهم هلته و فات شو.

دپښتو پالنه: لکه چه معلومه ده دهوتکو په دوره کښې پښتو ته ښه توجه شوي ده. پەدې وخت کښې ډېر پښتانه شاعران او ادیبان پالل شوي او روزل شوي دي، پښتانه شاعران به همېشه ددوی سره په جنګو نو، کور او بهر ملګري وو، د دوی سپه سالاران هم اکثر دپښتو ژبې شاعران وو، د هوتکو کورنۍ د پښتنو د ملي روح دبیدارولو. دوطن د آزادۍ علم‌اوادب اوپښتو ژبې‌دپاره له‌نورو پښتنو پاچاهانو څخه زیات خدمت کړی دی، حاجي میرویس د پښتو مین او شوقمن و، د رحمان بابا اشعار و ته یې زیاته عقیده درلوده او په سختو سختو مسئلو کښې به يې ورته رجوع کوله. ددې کورنۍ ښځې هم لکه میرمن نازو او بي‌بي زینبه دپښتو شاعراني‌وې شاید داروح دمیرمن نازوله خوز وخوږو اشعارو څخه دهوتکو په کالبوت کښې ننوتی وی. ولی چه دا یوه رښتیا ده چه پښتنه میرمن وه — سیدال خان ناصر: ملاپیر محمد، بابوجان بابی داؤد خان، ملانور محمد داتول دحاجي میرویس ددربار پښتانه عالمان او ادیبان وو، او هر کله به يې ورسره مهرباني اونمانځنې کولی په دې‌ډول شاه محمود هم دپښتنو شاعرانو سره مینه‌لرله اوددوی قدر او عزت به يې کاوه لکه چه ریدي خان مهمند به ایران کښې ورسره ملګری واو بیا يې دمحمود نامی په نوم یوه جنګنامه ولیکله ددې کورنۍ ترټولو مشهور سړی چه دپښتو ادب ته يې زیاته توجه کړې ده شاه حسین دی، البته ددې وجه به داوی چه ده څه موده دآرام پاچاهي کړې ده. دشاه حسین په دربار کښې به اوې لوی پښتانه عالمان اوادیبان موجود وو، همیشه به ادبي بحثونه او مجلسونه کیدل، اوپه خپله شاه حسین به هم دپښتو‌اشعار ویل، ددې زمانې پادشاه په وخت کښې پښتانه شاعران ښه قدرمن وو. دده څه بخششونه اوانعامونه چه پښتنو شاعرانو ته به يې ورکول سړی ته دمحمود غزنوي دفارسي ادب دپالنې دربار رایاده وي کوی ددې پادشاه په امر او مرسته محمد هوتک د پښتنو شاعرانو یوه تذکره ولیکله اویو ادبي شاهکار یعنی «پټه خزانه» يې یادګار پرېښود؛ وایې چه یوه ورځ ملا زعفران دیوې فتحې په زیری کښې دشاه حسین‌په حضور یو څوبیتونه وویلو پادشاه یو زعفراني شال ورو باخښه، دغسې يې ریدي خان ته د محمود نامې په لیکلو زر طلاوې ور کړې وې، محمد هوتک وایی‌چه‌ماد «خلاصة الطب» په نامه یو کتاب باد شاه ته وړاندې کړ، نوسل‌طلا ګانې يې راوبخښلې اوهمېشه به يې را سره دغسې مهرباني کولی، شاه حسین به هر هفته دقندهار په ارګ کښې عالمان او ادیبان راټول ول، ادبي مجلسونه به يې کول، اوپه دې‌صورت به يې خپل ادبي ذوق پاله.

دشاه حسین ددربار مشهور پښتانه عالمان اوشاعران دا دي،

ملا یار محمد ـ ملا محمد یونس ـ ملا زعفران، محمد هوتک ـ سپه سالار بهادرخان

ریدی خان ـ نصر الدین اند ه .

وایی چه شاه حسین پیښور ته کاتبان استولی وو . چه له هغه ځای څخه د رحمان بابا دیوان نقل کړی اودغه رو حانی ادیب حالات راوړی . نوویلی شوچه دا کورنی دپښتو ادب په ژوندانه کښې ډیر حق لری ، اودغه وختد نا آرامیو اوا لو ګولوسره دومره خدمت او تو چه هم ډیر قدر ور کښل کیږی .

دسدوزو کورنی : هغه وخت چه شاه اشرف په ایران کښې حکمران و ، نادر شاه افشار یې پر خلاف را پاڅېد شاه اشرف دایران پرېښودو ته مجبور شو ، قند هارته راغی اودلته ووژل شو . نادر شاه یو جنګی سړی و ، افغا نستا ن ته یې مخه وکړه . هرات یې ونیواو په (۱۱۵۰ هـ) کښې یې قند هار لاسته را ووست ، بیا په هندو ستا ن ورغی هغه یې هم قبضه کړ اوتر (۱۱۶۰ هـ) پوری یې پادشاهی وکړه ، په دی وخت کښې چه نا در ووژل شو ، نو احمد خان ابدا لی (احمد شاه بابا ) په قند هار کښې دپښتنو یوملی حکو مت جوړ کړ ، احمد شاه بابا دپښتنو لویه پادشاهی قا یمه کړه او دغور یانو پښتنو تېر عظمت یې بیا لاس ته را ووست احمد شاه د ز ما ن خا ن زوی او دسدوزوله طایفې نه و، چه ددرانیوپوه پښه ده ، ده سدو زو دپادشاهی اوله څېڼه کېښوده . داپادشاهی له (۱۸۶۱ هـ) څخه لتر (۱۲۵۸ ) پوری تقریبا یوقرن وچلیده احمدشاه بابا دافغا نستان اه لویو تا ریخی شاها نو څخه حسا بیږ ی ، چه د افغا نستان حدو د یې تر بخارا او ډیلی پوری ورسول ، او (۸) ځله یې هند و ستان ته لښکر کشی وکړه .

داحمد شاه له مرګ څخه ورو سته لږ وخت په قند هار کښې شهزاده سلیمان او بیا په (۱۱۸۶ هـ) کښې تیمور شاه پاچا شو . د (۲۱) کاله پا چاهی څخه ورو سته . دی په (۱۲۰۷ هـ) وفات او زوی یې (زمان شاه) پرځای کښېنا ست ، دده سرها کښتر ور ونه مخالف وو . خصوصا محمود شاه چه په هرات کښې والی و ، هغه ورسره جګړې شروع کړې چه آخریې زمانشاه مغلوب کړ ، په (۱۲۱۶ هـ) کښې یې کابل ونیو او دپاد شاهی اعلان یې وکړ ، بیادده پر خلاف دده ورور شاه شجا ع چه دپښور والی و، را پاڅېد، او په جنګو نوسره اخته شول ، داا خ او ډب تقریبا (۴۰) کاله جاری و ، چه کله په شا شجا ع او کله په شا محمو د د پـا د شا هی پـه تـخت قبضه کـو له شا ه شجاع په آ خر نی ځل په (۱۲۵۵ هـ) کښې دانګریزانو د لښکرپه امداد کابل ته راغی اوڅه وخت په کابل باد شاه وچه بیا دغیر تمنو پښتنو په توره په (۱۲۵۷ هـ) کښې وطن له انګریزا نو څخه پاك شو اودکابل باد شاهی دمحمد زیو په کو ر نی کښې دامیر دوست محمد لاسو ته ور غله .

دپښتو دادب پالنه :- لکه چه شکاره ده ، دې کورنی هم دپښتو سره مینه لرله اودپښتو دادب پا لنه اوروزنه یې کو له ، په خپله احمد شاه او تیمور شاه خود پښتو ژبی شا عران او ددیوا نونو خاوندان وو . داحمد شاه بابادربار له لو یو اد یبا نو څخه یو پیر محمد کا کړ دی ، دا سړی ددې کور نی استا ذ و ، چه په هغه ې وخت

کښې یې د پښتو د زده کوونکو دپاره د (معرفة الافغان) په نامه یو ابتدائي ګرامر ولیکه . او دا یو لومړی ګرامر او تعلیمي کتاب دی چه په دې وخت کښې لیکل شوی دی د پښتو ادب سره د دې کورنۍ مینې او میلان د هر خلک د پښتو شاعرۍ ته راواړول، کتابونه یې ولیکل او د دوی نامه ته یې منسوب کړل . د تیمور شاه په وخت کښې مطیع الله ، د زمان شاه په وخت کښې رحمت داوي ، میا نعیم ، ګل محمد ، عبد الرسول او د کامران شاهزاده د محمود شاه د زوی په وخت کښې چه په هرات کښې و، سپینه او عزیز خان د پښتو شاعران او ادیبان وو ، دې ټولو د خپل وخت د باد شاهانو صفتونه او مدحې کړې دي ،. نو ویلی شو چه د سدوزیو په وخت کښې هم د پښتو ادب د پاللنې او خدمت شوق په زړونو کښې پروت و . احمد شاه بابا که څه هم (۲۵) کاله او تیمور شاه (۲۱) کاله حکومت دراود . مګر د خپلو یو امپراطوریو انتظام ، جنګونو ، جګړو او د پښتنو د یوې نوې امپراطورۍ تاسیس ، د ادب وخوا ته د زیاتې توجه وخت په لاس نه ورکړی، که نه د پښتو ادب په خوا کښې به یې نور هم زیات خدمتونه کړي وای ، په دې دوره کښې د خوشحال خان د اولادې او د حافظ رحمت خان د کورنۍ خدمتونه او د پښتو ادب سره مینه او علاقه لرل ؛ هم د ډیر قدر وړ دی که رښتیا ووایو نو د خوشحال په کورنۍ کښې د باد شاهانو له کورنیو څخه هم د پښتو دپاره زیات خدمت شوی دی ، په نظم کښې ښه ښه دیوانونه، او په نثر کښې غوره تاریخي او قصصي کتابونه په دغې کورنۍ کښې لیکل شوي او میدان ته راوتي دي . مګر په پښتو کښې د لومړنیو لغاتو او قاموسونو د لیکلو فخر د حافظ رحمت خان کورنۍ ته راجع دی ، ځکه چه په دغې کورنۍ کښې نواب محبت خان «ریاض المحبة» او الله یارخان «عجایب اللغات» چه د پښتو د لغاتو کتابونه دي ، لیکلي او تالیف کړي دي .

## په دې دوره کښې پښتو ادب څنګه و؟

هره زمانه او هره دوره ځینې خصوصیات لري . چه هغه په ژبه او ادب کښې پوره اغیزه او تاثیر کوي ، د پښتو ادب په دې دریمه دوره کښې لکه چه وینو ځینې خصوصیات او صفتونه پیدا کړي دي چه وروسته یې په لاندې ډول شرګندول او بیانول غواړو :

نظم :- د دې دورې د شاعرانو او کتابونو له بیان څخه معلومه شوه چه د پښتو نظم په دې دوره کښې زیاته برخه اخستې ده ، او ډیر کتابونه په شعر او نظم لیکلي شوي دي ، د دې دورې اشعار د معنی په لحاظ دوې مهمې برخې لري چه یوه برخه یې عشقي ، تصوفي او بله برخه یې مذهبي او دیني ده او د دې سبب مونږ دا وروسته خبرې ګڼلې شو ؟

۱- د اسلام د مبارک دین له خپرېدو ، غلبې او عمومیت څخه وروسته مذهبي او دیني افکار او عقاید زیات شول ، مذهبي علوم رواج پیدا کړه ، او په دې وجه پښتنو علمانو د خلکو د پوهې دپاره په خپله ژبه کښې دا ذخیره زیاته کړه ، که څه هم دا حرکت له اولې او دوهمې دورې څخه شروع شوی دی ، مګر په دې دوره کښې یې د شعر او ادب زیاته برخه نیولې ده .

۲- ځینو خلکو د اسلام په اصولو کښې تصوف ، خدا پرستۍ او د حقیقي عشق خوا ته توجه وکړه ، ورو ورو یې له نوې دنیا څخه ځانونه راونغښتل ، او یوازې یې د زړه د دنیا او عالم مجرد سره

تعلقات قایم کړل، ددې په اثر ورته دځانله والی، ګوشه ګیری عقیده پیداشوه، صرف یو حقیقي وجود ته قایل شول، او دهغه دعشق او مینې جذباتو پرې غلبه وکړه، نو په دی وجه یې په شعراوادب کښې هم دغه جذبات ښکاره کړل او ټول اشعار له دغو افکارو ډک شول، تردې چه عشق او تصوف دمشرق او بیا داسلامی شاعری روح وګرځید، دفارسی، اردو او په خیله دعربی ادب په کالبوت کښې هم دغه روح رانووت نودد ومره تاثیراتو څخه وروسته پښتو ادب هم له دغې حصې څخه خلاصی ونه موند.

۳ـ ځینې او یولویو بزرګانو، او نیکانو خلکو په دې لاره کښې قدم کیښود لکه رحمان بابا او داسی نور چه عشق او تصوف یې وستایه او جهان یې له عشقه پیدا او بالله نو په دې وجه نورو شاعرانو هم ددوی په پیروی کښې ګامونه واخستل او شاعری یې دعشق په خوند کښې ګیره شوه.

٤ـ هر کله چه مذهب او عشق یوعقیده وی او دزړه دمیلان شی دی، نو هر چا دشخصی عقیدو او ذاتی میلانو نو په وجه دې خواته توجه وکړه او دا برخه یې پرمخ بوتله.

پرته له عشقی او مذهبی برخو څخه ددې دورې په ادب کښې نور مضامین هم لیدل کیږی، لکه جنګی قصې، شکایتی مرثیې، ستاینې او داسې نور. قصصی اثار هم په دې دوره کښې ډیر دی، ځکه چه له یوی خوا په فارسی کښې قصصی آثار ډیر شول، او اثر یې په پښتو هم پریووت، او له بلی خوا شخصی میلان هم دې خواته غلبه پیدا کړه ځکه چه قصې دتفریح او ساعت تیری یو لوی جزء دی هره زمانه له جګړو او ښګړو څخه نه خلاصیږی، دې جګړو ورزمی او جنګی اشعار هم میدان ته راوویستل یعنی جنګی قصیدې دملی شاعرانو او نورو له خوا وویلی شوې، که څه هم داقسم اشعار داولې او دوهمې دورې په ادب کښې هم وو، مګر په دې دوره کښې مخ په زیاتیدو شول. لکه دبرهان خان، مسعود ګل، ریدی خان، عزیز خان، تاریخی او جنګی اشعار ـ ... پردې هر کله چه دمغلو دورې څو قرنه لا پخوا دخلکو احساسات ښورولی وو، نو ددوی دمخالفت روح او دوی له ناکړدو او زیاتیو څخه شکایتونه هم په دې دوره کښې زیات ونو، دهمدې احساس په اثر په دې وخت کښې مغلو اله دظلم او زیاتې په معنا په پښتو ادب کښې داخله شوې ده لکه چه حمید وایی:

| | |
|---|---|
| په رښتیا که زیبر ولی پښتني وم | یو به نیسم مغلو اله درقیب ستا |
| پر تمام جهان قراره قراری ده | پر حمید دغم مغل راوخاته |
| خدای غمونه کړه د استا مغل زما | که په نور وګړی ظلم دمغل دی |

علیخان وایی: دکوڅی ګوټ ته دې پرې نږدم رقیب ته افریدی یم مغل ته خیبر نیسم

خواجه محمد وایی: دمغل په پاچاهی کښې می نیاو نه شی زه خواجه محمد به وو تحم و بل لور ته

دلفظ او ظاهر په لحاظ هم ددې دورې په اشعارو کښې یوره بدلون لیدل کیږی، هغه داچه عروضی اشعار ډیر شوی دی، ود تحریری ادب ټوله برخه دعربی او فارسی په مستعارو اوزانو کښې ده. هغه وخت چه دمذهبی علومه او عربی ژبې اثر معنا په پښتو پرېوت، نو لفظایې هم تاثیر ښکاره شو او عربی الفاظ او کلمات په پښتو شعر کښې زیات استعمال شول، حتی چه دپښتو داکثر و کتابو نومونه هم عربی دی. لکه افضل الطرایق، اسرار العارفین روضة النعیم ـ نافع المسلمین ـ نعداد الکبایر او داسی نور ـ دفارسی له خوا هم دغه تاثیر راغلی دی ځکه چه دفارسی سره دحکومت قوه وه، او دمغلو درباری او رسمی توجه یې دنفوذ

او تاثیر قوت زیات کړی و، هوا یدې دوره کښې بوازی هغو اوناخوانو شاعرانو دخپلو نیکونو خاص ملی وزنونه، خوازه اصطلاحات ساتلی دی او ځینی چاربیتې «بدلې» لنډۍ او داسې نور اشعار یې ویلی دی، چه داد هرې دورې مشترك مال دی «دې برخی ته د پښتو ملی او شفاهی ادب ویلی شو دا ملی اشعار اکثر عشقی «دینی تاریخی او جنګی دی.

نثر: یدې دوره کښې نثر هم زیات آثار پیدا کړی دی د نثر مهمی برخی تاریخی او قصصې دی، ددی مهمه وجه داده چه پادشایان په هر وخت کښې د شهرت او نوم د پاره د خپل ځان او د خپلې کورنۍ د تاریخ سره ډیره علاقه لری، نو په دی وجه په دی برخه کښې د پادشاهانو میلان او توجه او مرسته زیات کار کوی او ډیر خلك د دوی د تاریخ لیکلو ته تیاریږی، لکه چه په هره دوره او هر وخت کښې تاریخی آثار زیات لیدل کیږی. په پښتو نثر کښې تاریخ مرصع «پټه خزانه «تذکرة الملوك ددې دورې غوره آثار دی.

دا رنګ قصصی او افسانوی نثرونه هم په دی دوره کښې زیات وینو، د عشقی افسانو ډېر والی وجه خو هماغه شخصی ـ او ذاتی میلان دی. په دې حصه کښې د مسعود د آدم خان او درخانی قصه، دا خلیدای شی، او نوری افسانې ځینی د اخلاقی مطالبو د پاره او ځینی د ساعت تیریو د پاره ویو کیږی، مګر په پښتو کښی شفاهی افسانې ډېرې دی، چه هغه د پښتنو په روح برابرې جوړې شوې او ویل کیږی، دغه د پښتنو ملی افسانی دی ـ هر یو قوم دغسی ملی افسانی لری، چه هغه ورته خوږې او خوندورې وی. هر کله چه دا افسانو سره عموما خلك دلچسپی لری او د خلکو میلان ورته زیات وی، نو له دې کبله په دې دوره کښی ځینی افسانوی کتابونه د پښتو په نثر ترجمه شوې هم دی، لکه د افضل خان «علمخانه دانش» چه د کلیلی او دمنې ترجمه ده ـ په دې دوره کښی بل کوم مهم نثر چه پیدا شوی دی، هغه تعلیمی نثر دی، چه پیر محمد کاکړ لیکلی دی، تعلیمی او درسی نثر غالباً د پادشاهانو د توجه نه په غیر میدان ته نه راځی، رسمی ضرور تونه او شاهی توجه یې لوی عامل دی. نو دا ضرورت و، چه د شهزاده سلیمان په وخت کښی پیش شو او پیر محمد کاکړ د خپل تعلیمی نثر په لیکلو پیل وکړ، ددې دورې په اخلاقی نثر کښی د امیر محمد انصاری پښتو ګلستان د یاد ولو وړ کتاب دی.

په دې دوره کښی د لفظ په لحاظ صرف یو قسم یعنی بی قافیی نثر لیدل کیږی، قافیه دار نثر یوا ځې د روښان او درویزه په وختو کښی غلبه درلوده، په دې دوره کښی د نثر سبك هم هاغه دی چه خوشحال خان روان کړی و، دا سبك روانی او ساده والی لری. دا افضل خان تاریخ مرصع، علمخانه او نور هم د دغه طرز پیرو دی، هوا د پټې خزانې نثر زیات غوره او ښه دی، ځکه چه بر سېره په ساده والی او روانی محاورې ته هم نژدې او د جملو لنډوال هم په کښې دی ـ د خټکو د کورنۍ په نثر کښی څه قدر د فارسی رنګ شته، ځینی جملې او کلمې یې د فارسی په ډول او رنګ راځی، مګر د پټې خزانې نثر له دې نقطه ابزو ډېر و خلاص دی ـ دا رنګ د «معرفة الافغانی» نثر هم د جملو په لنډوال ستایل کیږی (ددې دورې د نثر نمونې د مخه راغلی دی.

ددې دورې د نظم او نثر د آثار و ډېر والی کښې شاهی توجه یعنی د پښتنو پادشانو مینه او میلان او یو مهم عامل دی چه، د هوتکو او سدوزیو په څه نه څه توجه د پښتو د ادب په خوا کښې ښا یسته کار شوی او ډېر آثار لیکل شوی دی، چه دا دی ددې دووې ځینی کتابونه په ور وسته ډول بیا نیږی.

# د نظم کتابونه

کتاب - موضوع

د حمید شاه گدا قصه قصصی
« د پښتو نیر ننگ عشق «
د غلام محمد والضحی تفسیر - دینی
د بای خان لیلی او مجنون قصصی
د فیاض د بهرام او گل اندامې قصه
د میرمن نازو دیوان - عشقی
د شاه حسین دیوان - «
د بابو جان د شها او گلان قصه
د ملا پیر محمد افضل الطرایق - دینی
د ملا نور محمد نافع المسلمین دینی
د ملا یار محمد مسایل ارکان خمسه - دینی
د ملا محمد یونس جامع الفرایض - دینی
د ملا زعفران گلدسته زعفرانی طبی
د الله یار دیوان - عشقی
د محمد عادل محاسن الصلوة - دینی
د ریدیخان محمود نامه - رزمی
د محمد آیاز دیوان - عشقی
د محمد حافظ تحفهٔ حافظ - دینی
د نصر الدین اندړ دیوان - عشقی
د محمد هوتک دیوان - عشقی
« خلاصة الطب - طبی

کتاب - موضوع

د محمد یونس دیوان - «
د عیسی آخونزاده دیوان - عشقی
د مطیع الله دیوان - عشقی
د شمس الدین دیوان - عشقی
د عبدالرسول دیوان او آزادنامه
د ملا جمعه دیوان . عشقی
د شیر محمد اسرار العارفین - دینی
« تجوید افغانی - «
د عبدالرشید رشید البیان «
د احمد شاه دیوان - عشقی
د پیر محمد دیوان - «
د عبدالرحیم دیوان - «
د سعادتخان کیمیای سعادت - دینی -
د حافظ شاه نامه - تاریخی
د فقیر الله فواید - دینی
د آخون گدا نافع المسلمین «
د نجیب دیوان - عشقی
د میا عمر نسب نامه - تاریخ
د محمدی دیوان - عشقی
د اکبر دیوان - «
د علیخان دیوان - «
د کاظم دیوان - «

کتاب - موضوع

د قلندر دیوان - «
د غلام محمد جنگنامه - قصصی
« معراجنامه - دینی قصه
د عبدالکریم زین العلم - دینی
د محمود تجوید
د حافظ دیوان - عشقی
د قاسم علی دیوان - «
د فرح الدین تعداد الکبایر - دینی
د عظیم دیوان - عشقی
د امام الدین د جمجمې - قصصی
د ملا حسن دیوان - عشقی
د صالح محمد دیوان - عشقی
د ملا ولیداد زین الحلم - دینی
د رحمت داوی لیلی او مجنون - قصصی
د میا نعیم دیوان - عشقی
د عبدالنبی دیوان - عشقی
د گل محمد دیوان - عشقی
د ملا زبردست روضة النعیم - دینی
د عزیز خان او سپینی جنگکی منظ

## څلورمه دوره له ۱۲۵۰ ق - ۱۸۳۴ ع څخه تر ۱۳۵۰ ق - ۱۹۰۱ ع پورې

### د محمد زیو زمانه

دهری دورې دادب د تاریخ اندازه دهغی دورې له شاعرانو، لیکوالو، کتابونو او آثارو څخه معلومیږی نو ځکه د نورو دورو د بیان په شان په دې دوره کښې هم لومړی د شاعرانو او لیکوالو په بیان پیل کوو.

### د څلورمی دورې شاعران او لیکوال

سردار پردلخان: د سردار پاینده محمدخان محمدزی زوی دی، دا سردار یو عالم فاضل او دعلم او ادب پالونکی و، څه موده ئې په قندهار کښې د پښتنو مشری کوله بیا په (۱۲۴۵ هـ) کښې وفات شو. ده په پارسی او پښتو شعر وایه، د پښتو اشعار ئې اکثر عاشقانه او په ملی لهجه دی دیوی بدلی سرئې دادی:

وی ګوریء د ګل پشان میږد رخسار د یاردی - عالمه ئې تمه داردی.

سردار مهردلخان: د پردلخان ورور او د پښتو وړبی شاعر و، په پارسی هم یو دیوان لری او «مشرقی» ئې تخلص دی. مهردلخان یو علم روزونکی او ادب پالونکی سردار و او یو ښه ادبی ذوق ئې درلود. وایی چه دده ځای په قندهار کښې یو لوی ادب تون وچه ډیر شاعران او ادیبان به په کښې راټولیدل لکه میرزا حنان، حاجی عبدالله، صدیق آخندزاده او نور - دا سردار په (۱۲۷۱ هـ) کال په قندهار کښې وفات او هلته مدفون دی پر ته له دیوانه په تصوف کښې د (جمع الجمع) په نامه یو بل کتاب هم لری. پښتو اشعار ئې لږ ویلی دی یو څو بیته ئې دادی:

پلووا خله له سپوږمۍ مخه پرمنی — ستا بی مخه راته شپی دی ورځی سپینی

ستا له وره تللی نشم هورې دورې — در ته ناست یم په دربار یې می دی سپینی

مشرقی دې په تیاره د پلټون ژاړی — ور ته لمر د مخ ښکاره کړه په مخ سپینی

میرزا حنان: دا شاعر د دیار اسمی پیری له ښو او غورو شاعرانو څخه د قندهار په خواشا کښې ئې استوګنه کوله. ده د سردار مهردلخان سره ادبی علاقه درلوده او دهغه له ملګرو څخه و تر (۱۲۷۱ هـ) پورې یې ژوندئې یقینی دی. میرزا حنان په پښتو او فارسی شعر وایه او په پښتو کښې یو عشقی دیوان لری دده په اشعارو کښې نازک خیالی او نوی خیالات هم شته، ادبی تلازمات، نوی استعاری او ښکلی تشبیهات په کښې څرګند دی او په دی برخه کښې د حمید بابا دادبی مکتب شاګرد او پیرو دی لکه چه په خپله وایی:

دا حنان ئې دی د شعر خوشه چین — د حمید د خوش نظمۍ په زراعت کښې

حنان خوازه، دلچسپ او خوند ناک اشعار ویلی دی، شعر ئې په لفظی ښکلو ښا پسته دی، اکثر عشقی او یو نیم ځای اخلاقی بیتونه هم لری مګر له حمید څخه ئې ډیر اقتباس کړی دی دا یاد کی ئې واوریء:

غنچه هم له خون دلانو څخه ستا ده — چه په فکر دی د خولی ډوبه تنهاده

شکوه مکوه دیار له شوخو ستر ګو — رحم عیب دی چه وشی له جلاده

په اسوس می زړه خوله یاره پر ېکړې — سپلنی ته دا ور ته ما افنده مره

کښې له جوره حنان ژاړي عیب ئې نه دی — د کمـزوري دزړه سوده په ژړاده

چه سپالي کوي دیار له شو خوستر کو — همیشه لکه بادام کاڼي په سرخوري

داد کوم ماهروي د تیغ له وهم هسې — دهالـې سپر په سرو نیو ماهتاب

شو زړه چاك لکه قلم نه کا په عشق کښې — په لاس نه ورځي هر گز گریوان دشعر

ماوي وایه خه ارمان اري په زړه کښې — وې منگولې که مې سنا په وینو سري کړې

صدیق آخونزاده: دمیرزا حنان معاصردی، دی په قوم هوتك او په قندهار کښې او سېده دسردار مهردل له ادبي ملـگرو څخه و، ده په ملي لهجه ښه خوازه اشعار ویلي دي ښه روانه طبع ئې درلوده، دی ځینې فکاهي اشعار هم لري، دعشق او مینې په دنیا کښې ئې خو ږ نه دون تیر کړی دی دا بیتونه ده دي:

خپل ساقي راته نیول ډك جامونه دي — بېلتانه پر ملك یاشلي ډك جامونه دي

سپینه خوله دي کټوري دي دشرابو — سپینکي غاښ دي مرواري لب دي لالونه دي

بابا سید گل. د یکلي په (بپه) کښې اوسېده د پښتو یو ملي شاعر دی چه ډیري ملي بدلي یې دخلکو یادي دي. ده دامیر دوست محمد خان په وخت کښې ژوند کاوه.

شلیم: په قام علي زی او د قندهار دزمینداورو، ده په ملي او زانو ډېر اشعار جوړ کړي دي عاشقانه احساسات یې تېز او بدلي یې اغیزناکي او مؤثرې دي دیوې بدلي سریې دا دی:

پر تامین زه خوار و زار یمه — داد هجران په غمو یار یمه

په سر تور سر په یېلي ښې درپسې خوار یمه — جانانه زه پر تامین یمه

## ددې دوری هغه شاعران چه ډار مستټر ښودلي دي

په دې دوره کښې د پښتو ځینې ښاعران شته؛ چه مونږ ئې دمشهور مستشرق ډار مستټر فرانسوي په ذریعه پېژنو. داشاعران اکثر د پښتو دملي شاعرانو په ډله کښې حسابیږي او دغه مستشرق ئې د کلام نموني او اشعار په خپل کتاب د (پښتنخوا هار و بهار) کښې راوړي دي. ددې شاعرانو جنـگي دیني عشقي او داسې نـوري بدلي او چار بیتي ویلي دي. داشاعران اکثرد (۱۲۵۰ ه) دو خـتـو شاعـران دي چـه د محمـد زیـو د بادشاهـی په اوله دوره کښې تېرشوي دي، یعني دامیر دوست محمد خان همعصر بلل کیږي ددې شاعرانو حالات او ځینې اشعار په دوهم ټوك پښتانه شعرا کښې راغلي او بیان شوي دي، نو ځکه ئې دلته نور بیان دومره ضرور نه بولو، صرف غواړو چه تش نومونه یې بیان کړو. داشاعران اکثر د پېښور دخوا دي.

نورشالی- دوستم- میرافضل- امانت ملیار- شاه گل- طالب گل- بابا یاب- حمید گل علیخان عیسی گل- عبدالغفار- بهرام- گل محمد- برات- مجیدشاه- میر عبدالله- احمدشاه- میارجب سیداحمد- محمدخان- ارسلا- عجم- بادر- کریم- محمود- ظریف خان- غازالدین- عبدالله اکبرشاه- ناصر- قاسم- یاسین- علیجان- بیار احمد- نواب خان (۱)

## ددې دوری نور شاعران او لیکوال

حبیب الله کاکړ: دقندهار دخورا مشهور وعالمانو څخه دی، دفیض الله اخونزاده زوی او په (حبو) اخوندزاده مشهور و دی په عقلي او نقلي علومو کښې لوی عالم او د زیات شهرت

---

(۱) داورو ستی (۸) تنه په پښتانه شعرا کښې نه دي راغلي.

خاوند ؤ نو ځکه په محقق قندهاري یادیږي، ده د مولوي اسمعیل دهلوي سره علمي او مسلکي ارتباط درلود: چه هغه د سید احمد بریلوي (سید باچا) له ملګرو څخه ؤ (۲) علامه په عربي، فارسي، اردو او پښتو ژبو کښې ډېر تالیفونه لري چه ټول تقریباً (۲۰) ته رسیږي ده په عربي او فارسي کښې هم اشعار ویل، په پښتو کښې ئې د (منهاج العابدین) په نامه یو کتاب د امام غزالي له کتابه په لنډه مثنوي ترجمه کړی دی، شعر ئې خوږ او روان دی د علم په باب کښې وائي:

علم ډېر عظیم دولت دی　　چه د دوو کونو نعمت دی
ښه عزیز نفیس ګوهر دی　　قیمتي صافي جوهر دی
د هر فضل و هنر کان دی　　د جهان په تن کښې جان دی
قوت د زړه قوت د روح دی　　سرمایه د هر فتوح دی

علامه په (۱۲۶۵ هـ) کښې وفات، او په قندهار کښې مدفون دی.

عبدالمجید کاکړ: د علامه حبیب الله په کورنۍ او شاګردانو کښې یو عالم سړی و په دیني علومو کښې ئې دسترس درلود، وایي چه یو زبردست خوشخط هم و، ده په (۱۲۸۶ هـ) کال په قندهار کښې یو پښتو «سیرت نبوی ص» په لنډه بحر منظوم کړی دی. دا کتاب د پیغمبر (ص) په سیرت کښې یو خورا مهم کتاب دی چه د پښتو ژبې له تاریخي او مذهبي آثارو څخه ګڼل کیږي.

رسولداد: ددې دورې له اخلاقي شاعرانو څخه دی، یو کتاب ئې د (درالبیان) په نامه په (۱۲۰ هـ) د پښتو په لنډه مثنوي لیکلی دی، موضوعات ئې دیني مذهبي دي. رسولداد په قام خروټی دی، چه د جنوبي د خوا په (ګومل) کښې ئې استوګنه کوله شعر ئې ساده او آسان دی یو بیت ئې دا دی.

چه تربیت د یتیم کړینه　　ډېر ثواب ګوره لرینه

مرادعلي صاحبزاده: د پلار نوم ئې عبدالرحمن دی چه د ننګرهار په (کامه) کښې ئې استوګنه کوله. دده کورنۍ ټوله د علم او فضل کورنۍ ده، دی په خپله هم د عربي علومو ښه عالم او ملا ؤ. په عربي، فارسي او پښتو کښې ئې د شعر طبع درلوده او په دې ژبو کښې ئې ځیني تالیفات لري مشهور اثر ئې (تفسیر یسیر) دی دا مهم تفسیر ئې په (۱۲۸۲ هـ) کال لیکلی، او بیا په پېښور کښې چاپ شوی دی تفسیر یسیر په پېښور کښې ډېر شهرت لري او ښځې او نر ئې په درس لولي. د تفسیر یسیر نثر د خټکو د کورنۍ د نثري سبک سره نیژدیوالی لري. مرادعلي صاحبزاده ځیني اشعار هم ویلي دي چه ټول دیني او اخلاقي دي دا بیت دده دی:

څوک چه زهر درله درکاور کوه ته ور له شات　　او که ځان له تانه یرې کاته بیا شه ور ته مرآت

دوست محمد خټک: دا سړی د خوشحال خان خټک له اولادې څخه دی، ورینکه ئې محمد زمان له خټکو څخه قندهار ته راغلي ؤ او دغلته ئې استوګنه کوله. دوست محمد د خټکو د علمي او ادبي

---

(۲) سید باچا د هند د بریلي دی د (۱۲۵۰ هـ) په حدودو ئې د پېښور په علاقو له سکانو سره ډېر جنګونه او جهادونه کړي دي، دی بیا شهید او په (بنیر) کښې ښخ شو. ډېر پښتانه عالمان او شاعران دده مریدان وو.

کورنی وروستی شاعر اوادیب دی یو فاضل، عالم او متصوف سړی ؤ، په پښتو ژبه ئې ډیر تالیفات کړی دی، د (واعظ کاشفی) فارسی «تفسیر حسینی» ئې د پښتو په نثر د (تفسیر بدر منیر) په نامه ترجمه کړی دی، نثر ئې ساده او د تفسیر پسیر پر سبک دی. دوست محمد په نظم کښې یو «بحر العلوم» او بل «اخلاق احمدی» نومی کتابونه په لنډه مثنوی ډیکلی دی چه مطالب ئې ټول دینی او اخلاقی دی. دادواړه کتابونه ئې تقریباً ډیرش زره بیتونه رسیږی.

دوست محمد تر (۱۲۹۰ هـ) پوری ژوندی ؤ، په خپلو کتابو کښې ئې د امیر شیر علیخان دوره ستایلې ده. لکه چه وائی:

دامیر د شاهی زور دی عالم ده وته انسکور دی

په کابل کښې جانشین دی حکمرانه ئې نگین دی

نورالدین: دا شاعر د پېښور په خواو کښې اوسیده او دامیر دوست محمد خان په عصر کښې ژوندی ؤ. د ملی شاعرانو په ډله کښې او له درجه سړی دی. په چار بیتو کښې پوره اقتدار او لوی لاس اری. نو په دې لحاظ ورته د چار بیتو استاد ویلی شو.

ډیری جنگی تاریخی او عشقی چار بیتی ئې ویلی دی چه په چستی او خوز والی کښې مشهوری دی او په هرځای کښې ویل کیږی. دده ډیری چار بیتی دار مستتر په خپل کتاب کښې راوړی دی. دیوی چار بیتی اول بند ئې دادی.

ما ولیده یارانو د لیلا په سپین جبین خالونه دری خلور
خوری دی شولی کوکی د ښایست په سوات بنیر رنځور دی کرم بلبلی
همیش گرځی بلبلی هار له غاړی دې چا پیر سری نوکی سری منګولی
محل کښې دې ولاړه گوره ونه د نمیر تازه ئې دی غندلی
له پښو تر سره پوری دی داستا صورت نازبین جوړه دی نشته نور

نیاز محمد: د باجوړ د چار په کلی کښې اوسیده په نیازی مشهور او په قام سالارزی ؤ. په ملی لهجه ئې ښه اشعار ویلی دی دیوی بدلی سر ئې دادی.

سره گلونه همیشه دریا ندی سوال کالیلی چه آخر ئې درنه پور حسن و جمال کالیلی

گوجر: په مقام تر کانی او د چندول د (میارو) د علاقې دی. په ملی لهجه ښه پاخه جذاب دعشق او مینی له کیفه ډك اشعار لری، او د ۱۳ پیړی له ښو شاعرانو څخه دی. دیوی بدلی په آخر کښې وائی:

قربان دې دخبرو شوم، لوگی دې دسندر وشم کو جره ته به مړ شی
شعر به چا ته ور له غاړی شی لالو ئې چه درنه لاړه شی

محمد ولی: په قام ماموند دی، د کونړ په (مروره) کښې د (۱۳۰۰ هـ) په حدود ووفات شوی دی وائی چه دی د ښی روانی طبع خښتن ؤ او په ملی لهجه ئې ښه خوږ اشعار او چار بیتی ویلی دی.

حضرت علی: داسمار په خان مشهور او په قام ترکانی دی. د ۱۳ قرن له ښو شاعرانو څخه حسابیږی، په ملی لهجه ئې ځنې خوږی چار بیتی ویلی دی دیوی بدلی سرئې دادی

خپر د دیدن را کړه مسافر د بل وطن یمه      در کښې دی ولاړیم کړه دي سپي زمانه کوری کړی

اکرم جان : د دغه حضرت علی د تره زوی ؤ . په ملی شاعرانو کښې حسابیږی په دوهم ټوك پښتانه شعرا کښې ئې یوه خوږه چاربیته راغلې ده .

لیونی محمد جی : داشاعر په اصل د (یکلمې) دی ډار مستقر په (ایبت آباد) کښې لیدلی ؤ وایی چه ښې خوند وری اوله جوشه ډکې چار بیتې لری ، اشعار ئې عشقی او موثر دی د یوې چاربیتی یو بند ئې دادی .

چه مازدیګر شی شاه په غاړه ښه امیل کا ندی      ټول د نجونو سیل کا ندی
په بخملی ور بل لګیاوی تو ر بلبل کا ندی      زړه زما غلبېل کاندی
دګل غنچه شی لکه زانې په کا بل و لګی      اورمی په ګو ګل ولګی

صفت خان : د مشرقی د چپرهار د علاقې د (دولتزو) دی ، په ملی لهجه ئې ډیری چار بیتې ویلی دی ، څنی اخلاقی اشعار هم لری ، مګر اکثر ئې عشقی دی . دا بیت د ده دی .

د کمال په ګانه ځان واړه ښایسته کړه      په دنیا کښې څه بې علمه سړیتوب دی؟

میرهزار : د چپرهار په (کنډی باغ) کښې اوسیده ، د ملی شاعرانو په ډله کښې د خوږو بدلو او چاربیتو خاوند دی ، د وفات وخت یې د (۱۳۰۰ ﻫ) حدود دی ، په دوهم جلد پښتانه شعرا کښې یې اشعار راغلی دی .

خانمیر : داشاعر د چپرهار درود په (غزو کلی) کښې زیږیدلی دی ، وایی چه په قام مومند ؤ . د ده اشعار له ملی جذباتو او د پښتنولۍ له احساساتو څخه ډك دی د یوې چاربیتی سر یې دادی :

په چپ کښې ډال په ښی خنجر نیسمه      لو ری د خصم برابر نیسمه
یا به له صدقه خپل وطن شی زما      یا به په سر وویښو کفن شی زما

باره خان : د چپرهار درود له ملی شاعرانو څخه حسابیږی ښه خوند ور او چست اشعار یې ویلی دی د (۱۳۰۰ ﻫ) په شا وخوا کښې یې ژوند کاوه په خپل ناخوانی داسی افسوس ښکاره کوی :

کاشکی وړو کتوبه په ما یو ځلی راغلی وای      ما خولیږو ډیر سبق په خپل عمر ویلی وای

خدای دوست : داشاعر هم د چپرهار د سرسبزه او شاعرانه رود په (ګوداره) کښې زیږیدلی دی ډیری عشقی چار بیتی او غزلی یې ویلی دی ، ناخوانه شاعر ؤ ؛ مګر ښه طبع ئې در لوده په دوهم ټوك پښتانه شعرا کښې یې یوه بدله شته .

ګل محمد : په قام خربون دی چه د خوګیانیو په (سرما) کښې د امیر شیر علیخان په زمانه کښې اوسیده ډیرې ملی چار بیتی او غزلی یې په نامه مشهور دی .

بهره مند : د خوګیانیو (بربیار) کښې زیږیدلی دی ، اشعار یې په خلکو کښې مشهور دی څنی قصی یې هم په نظم کړی دی ، په ملی شاعرانو کښې ښه درجه لری .

درمحمد : په قام ځاځی دی تقریباً د (۱۲۹۰ه) په حدودو کښې یې ژوند کاوه دی یو عالم سړی وله ابتدانه یې شعروایه اوبیایی ښه پاخه اشعار ، غزلی او چار بیتی و یلی دی؛ چه په ځاځیو کښې مشهوری دی . دده د یوی ځنځیری چار بیتی یو بند دا دی ؛ چه دقافیو عویمنه یی یکښې جوړه کړی دی .

دالو نګین په سینه و ډی لکه غنچه ، سوچه ، سینه باغچه ، دچه نصیب نیو لی
ثانی یی نشته تمامی صورت یی ګل ، سنبل ګوره چار ګل ، دنجل سری یی منګو لی
چه مازیګر په ګودرو ویښم سورشال ، سنبال ، مکوه خیال ، جنجال مستی بلبلی
لاس می ډیر پریږده دروپیو په قطار ، یو وار ، خال په رخسار ، دیار په جبین سور

عبدالزاهد : په قام اندړدی ، یو طالب سړی ؤ مګر په ځوانی کښې ور سره عشق ملګری شو . نوله دغه سوزه یی خوازه اشعار ویلی دی ، په ملازاهد مشهور او په خپله علاقه کښې دلوی نوم خاوندؤ . وایی چه یو دیوان یی هم درلود مګر اوس یی چیرته پته نشته . دی هم ددرمحمد په شان متقی چار بیتی لری .

ملامقصود : په قام خلیل مومند او د پیښورد « کنړی ولی » ؤ . دار مستتر په هار و بهار کښې په مقصود جان یاد کړی دی ؛ دده په خپل شوق بدلی جوړولی . ښه روان او بی تکلیفه شعر یی درلود په خپلو چار بیتو کښې یی دلال پوری اکبرخان ځوځایه ستا یلی دی .

ملامقصود دامیر عبدالرحمن خان معاصرؤ . دی ځینی جنګی او تاریخی چار بیتی هم لری او په چار بیتو کښې د نورالدین سره برابر ینری دا چار بیته دده ده :

شین خال دی په مثال اینبی دورو ځو په پیو ند … ځلیږی زرافشا ن
اوربل دی الوول لکه بخمل دی بند په بند … راپور ته که چشما ن

شین خال دی په مثال اینبی دورو ځو په ما بین … د و ر ا یه تجلی کا
نری پوزه الف خو ا زه دی دواړه شفتین … ړنګی می واو یلی کا
زنخ لری ګبین خوله دی شیرین سره دی عینین … څوک څه لره ګیلی کا
جمال در کړی رب لری نسب دا سی خر ګند … ر ایت دی که خاقان

جمال را کړی رب لرم نسب دبا چا یانو … روغ ځان ساته که بخته
عاجز غریب سړی یی یاری مکړه دخو با نو … چه را نشی بی و خته
ته خپل مساوی ګوره ستادی خوی دناد انو … لره مه طبعه سخته
ژوندی به دی پری نږدم زما خدای په نوم سوګند … ته و ا و ره دا بیان

## دغزاچیانو ډله

توکل ددیار لسمی پیړی دورو ستی نیمی له مشهورو ملی شاعرانو څخه دی . کوکړ ښیوی ته منسوب او په قام صافی ؤ . توکل په ابتدا کښې دهقانی کوله بیا دفقیرانو په دعا یی شعر جاری شو ، دشاعری په ګلشن کښې یی خوږی خوږی نغمی و کړی دباغ توتیان یې په نارو کړل زړونه یی تازه او مخ یی غوټی یی پرانستی لکه نسیم په باغونو او ګلانو و کرځیده او د سوز و ساز ترانی یی وویلی .

توکل په ملي ادب کښې هاغومره شهرت لري څومره چه په کلاسيکي ادب کښې د رحمان بابا په نصيب شوی دی دده د اشعارو زياته برخه غزلي دي او چاربيتۍ يې کمې ويلي دي غزل يې يو مخصوص آهنګ او وزن لري چه ډېر خوندور وي وايي چه دده غزلي که جمع شي نو څو ديوانه به تري جوړ شي ، د توکل په غزلو کښې دعشق او محبت لوړه جذبه ليدله کيږي او په دې معنوي خصوصيت کښې د رحمان بابا اشعارو ته ورته دي - دی يونا خوانه سړی ؤ مګر په غزلو کښې د استادۍ مقام ته رسيدلی دی . توکل د يو مخصوص خوندور ، پر جوش او چست سبک او آهنګ موجد دی چه ډېرو وروستنو شاعرانو يې پيروي کړې ده د توکل د يو غزل څخه دا دوه بيته ولولئ .

دا په باد د نسيم سروه ده کښېښوه ای صنمې که په خپل حرم کښې ښوږې
دا زما په فکر هيڅ دی بې ګمانه دهوسې سترګی دا ستا تر ستر ګو پورې

د توکل دا يو غزل ولولئ .

زه خوړلی په زړه بانديستا د زلفو منګر ويم
طبيبان خوشي خواري کړي ساه مې خېژي په ناروېم
جلاتان را پسې ګرزي په اوږو و ښکلي تورې
وا به نه وړم ستا د لوری زه مين ستا په ابرو يم
لاس مې ونيسه په بند کښې ای دلبره خدای د پاره
د مجنون پشان مې حال دی مدام پروت زه په خوارو يم
تش کالبوت په دنيا ګرځم ساه مې نشته په بدن کښې
د پښتو ن ظالم له لاسه حلال شوی په تبرو يم
زه توکل له غيرو خلقو کنا ره ناست يم ځان ژاړم
د ګناه پېټی مې دروند دی خپل مولا ته په زار ويم

ميرزا : ميرا د توکل همعصر ، په قام اپريدی کوکی خېل او په (سپينه ډېرۍ) کښې او سيد ميرا په موسيقي او ملي آهنګونو کښې ښه مهارت درلود ، سازاوسرود به يې کاوه او په بېل بېل آهنګ به يې غزلونه جوړول ، نو ځکه دی په پښتو کښې د وزنونو او آهنګونو مخترع بلله کيږي . دده خوازه اشعار او غزل په هر ځای کښې معروف او مشهور دی ، غزل يې عشقي دی مګر تصوفي افکار هم پکښې اثر ډېر ليدل کيږي د يو غزل يو بند يې دا دی :

ميرا صر ياد کړی پروت دی رنځور پری مقرر شو د غم ناسور
طبيبه زر شه و کړه تلوار عاشق سوالګير دی له خپله يار
په در دی پروت يم په زړه افګار

سيد کمال : د کونړ (د شلې) دی ، طالب او ملا سړی و ، په (بېبوجانه) نومې يوه نجلې باندې يې زړه بايللی و ، ټول عمر يې په آه سوز او ژړا کښې تېر شوی ، او لکه د شمع سوزېدلی دی ، د بېبو جانې د پاك عشق په مينه او خوند کښې له سوزه ډك اشعار لري . دی د بېبو جانې مجنون وا وبي د بېبو جانې له نامه څخه يې نو رهيڅ په خوله نه راتلل . دده غزل په خلکو کښې زيات شهرت لري يو ديوا ن چه ( ګلشن عشا ق) نوميږي د سيد کمال په نامه ليدل شوی دی ، مګر دده د ملي وزن غزلي او چاربيتۍ نه دي

تدوین شوی ، دی الکه چه یه وطن کښې د توکل سره شریك دی دغسې په شهری دنیا کښې هم سره ملګری او دیوه سبك پیروان دی . یو غزل یې دادی :

غم د یو جانی لیونی لکه مجنون کړمه — نور به څه ژوندون کړمه . هی توبه د عشقه شه
کپږ شوم نه خلاصیږم ستا د مینی یو ګلی زه — ستا آواز به کله یه غوږو او رمه بلبلی زه
ستا مینی بلبلی زه اخته یه جګر خون کړمه — اوس به څه ژوندون کړمه - هی توبه له عشقه شه
کاشکی چه پیدا په دې نړمګړی دنیا زه نه وای — زه که په دنیاوی مینتو به هلته نه وای
ورك شی مینتو به دړ په دردی یه بیلتون کړمه — نور به څه ژوندون کړمه . هی توبه د عشقه شه
بی ګناه می خاله د غماز یه مخ رتې یو — ما د خیله دره دا یه کوم سبب تر تې یو
زه دې سپك وری دغماز انو یه لمسون کړمه — نور به څه ژوندون کړمه . هی توبه د عشقه شه
واخله سید کماله کند کچکول د ګدایی په لاس — ګرزه دربه در همسا کوټ د جدایی په لاس
غم دی یو جانی ژوندی دوب لکه قارون کړمه — نور به څه ژوندون کړمه هی توبه عشقه شه

ملامیران: د قندهار د ۱۴ پیړی له شاعرانو څخه دی، اشعار ئی عشقی دی او دغزلو یو نکو په ډله کښې د ربیزی . په دوهم جلد پښتانه شعرا کښې ئی غزلونه راغلی دی .

کمال: په څټه نورزی دی ، د قندهار په (دروشان) کښې یې استوګنه کوله ، دی په کمال بابا مشهور او په ملی وزن ئې غزلی لری . دده په اشعارو کښې دعشق او محبت جذبات پراته دی او په ملی اوزانو کښې ئې لاس لری لکه چه وایی:

اثری مینه می شکاره شوه په بدن کښې ناری وهم — د زړه آشنا را یاته نشو په وطن کښې ناری وهم
اثری مینه می شکاره شوه ربا بو ته وهم — زه ګنهګار نیم دار نګه سرو دونه وهم
چه په شهباز سره یی ځای په ځای تار ونه وهم — ستاد محبته می تارونه په ګفتن کښې
ناری وهمه . . . . .

داستا مینه چه شکاره شوه نو خوشحاله شمه — ته په لیمو می قدم کیږده چه پاماله شمه
ګوندی داستا په روی زه خلاص لدې جنجاله شمه — ګوندی داستا په روی ایله شم په ګلشن کښې
ناری وهمه . . . . .

نوروز: دپښتور په (کالو خیلو) کښې زیږید لی دی ، دی ډیر بی تکلفه او طبیعی شاعر و ، په غزلو کښې یې زیات شهرت حاصل کړی او په دی لار کښې داستادی درجه لری ده په هرنوی راګ او وزن غزل جوړ کړی دی ، سازنده هم و او دشاګردانو ډله به ورسره وه . نوروز په پښتو کښې ځینی هندی وزنونه او راګونه را داخل کړی دی غزل یې په چستی او تیزی ممتاز دی، چاربیتی او رباعی ګانی هم لری . دپښتونخوا په مجالسو کښې ډیر و ربابو نواو غږکو د ده په نغموزلی ، او ماهرو یانو ور سره لاسونه غور ځولی دی . دده ډیر اشعار د (بهار نورو زی) په نامه چاپ شویدی . دیو غزل یو څو بیته یې دادی :

چېی می په زړه ځی د غم داسی داسی — ژوندون می کاته ګ ستاستم داسی داسی
نه یاتی مجنون نه فرهاد او شیر ین شه — فنا شو په عشق کښې عالم داسی داسی
سیلاب می داو بنګو په مخ ځی همیش — بهیږی له ستر ګو می نم داسی داسی
غمازی می پر بیاسی د غم په خندق کښې — زه غوا ړم مدد ستا کرم داسی داسی

نو روزه مثال د عمل ځانته بل کړه ــــ شته ځای د ختر په تورتم داسې داسې

محمد دین : دا شاعر هم له خورا مشهورو شاعرانو څخه دی، د پېښور په (نوښار) کښې اوسېده غزلې او چار بیتې ئې ډېر مشهورې خوندورې او چستې دي د نوروز او توکل په ډله کښې د دربدو حق لري . په (بهار نوروزي) کښې یې ډېر اشعار چاپ شوېدي اشعار یې زیات عشقي دي . یو مجلسي شاعر او ډېر شاګردان یې درلودل ، ځنځیري چار بیتې هم لري او شعر یې دقافیو مخزن دی دیو غزل سر یې دا دی :

سپین مخ دی ګلزار دی ــــ زړه مې نا قرار دی
ستا زلفې سمسورې دي ــــ سرې امبې زایورې دي

دیوې چار بیتې یو بند یې هم ولولئ :

دښایسته آوازدې لاړه په عالم کښې اوربلور ــــ زړه دې سوی یم په اورتیک دې کوز که له جبینه
دنرې زنې دپاسه دې خالونه دي قطار ــــ توري زلفې دتاد تا رېدي برتې لکه وریځې
په سینه کښې دې پخ شوي دي دمینې دوه انار ــــ درته پروت یمه بیمار دا رومي د مرضې
رب دې نکا څوک په رنځ باندې دمینې ګرفتار ــــ نن دې ځان کړ او سنګار بېګناه مې په اور سوزې
کله زیر شي کله هم سره ګونګر ودې کوي شور ــــ قدم اخلې په تکور ښاپیرۍ راغلې له چینه

په دې ډله کښې ځینې نور شاعران چه شامل دي یعنې ملي غزلې یې ویلې دي دا دي :
شهنواز - محمد ایوب - شاه پسند - برخوردار - خدایرحم - شاه عالم - نور صاحب ملا میر یحیی (۱) - عبدالودود - صالح محمد شاعران په دوهم جلد پښتانه شعرا کښې بیان شوي دي .

ولي محمد . دا سړی د سوات دخو او یو پښتون ملا او د سوات صاحب (عبدالغفور علیه الرحمه) مرید او شاګرد و . تر (۱۲۹۵ ه) پورې ئې ژوند معلوم دی ده د خپل مرشد حالات کښې دمثنوي په ډول یو کتاب لیکلی او په دې کتاب کښې ئې دمیا عبدالغفور صاحب د ژوندي واقعات بیان کړي دي او (دمیا عبدالغفور مناقب) نوم یې دی د ځینو غزاګانو بحثونه هم پکښې شته ، په دې اعتبار ده ته یو تاریخي او رزمي شاعر ویلی شو . د غازیانو په صفت کښې وایي :

کمربند سره وې ملا دد وی تړلی ــــ او سرې سترګې ئې په وینو وې اړلی
چه یې چغه دشمن واورېده په غوږ ګې ــــ غوړځاوه به یې له خولې نه ورته زګې

شیر محمد دقندهار په (پشت رود) اوسېده ، په پښتو کښې یو دیوان (۲) لري اشعار ئې عشقي او اخلاقي دي یو بیت ئې دا دی :

دا زما دزړه آهو دتن له دښته ــــ رب خبر چه کوم صیاد په الم یووړه

عنوان الدین : کاکاخیل دی په (ایبټ آباد) کښې اوسېده ، ښه شاعر و . د (۱۳۰۰ ه) په حدودو کښې ئې دسوات جغرافیائي حالات په نظم کړي دي د نظم یو څو بیته ئې دادي :

راشه واوره دا بیان ــــ چه ټول سوات شي درعیان
سراسر یې ګرځېدلی ــــ ما په خپله دی لیدلی

---

(۱) وایي چه ملا میر یحیی او عبدالودود دیوانونه لرل مګر اوس ورک دي .
(۲) ددې دیوان یوه نسخه په پښتو ټولنه کښې شته .

د یوسف‌دی دا اولاد — اکوزی باندی شی یاد
یوه دره ده سراسر — سیند په منځ کښې برابر
په‌شمال ترې خوازوزی دی — په‌جنوب ترې بابوزی دی
بابوزی ډیری تېږی دی — سراسر سره پرتی دی
رانیزی دی په مغرب — اله ډنډ کښې دی غالب
دغه ځای دخانی کوردی — دکاجود اولاد وروردی

نظر محمد کاکړ : د(۱۳۰۰ه) په‌حدو دوئې دقندهار په (زنګی آباد) کښې استوګنه درلوده عالم سړی و، په‌پښتو او فارسی کښې شاعراو په دواړو ژبو کښې دیوانونه لری یو بیت ئې دادی :

ره‌یونه یم چه‌له غمه دربدر شوم — خلقې دې‌له دې غمه تار په تار کړې

غلام محمد یوسفزی : دپېښور د (چارسدی) اوسیدونکی و، یو دردمن متجسس پښتون او یوه عالم سړی دی. ده دمولانا حالی هغه‌مشهور اثر یعنی (داسلام مدوجزر) په پښتو مثنوی ترجمه کړی دی. دا کتاب دمسلمانانو دترقی اوزوال دسببو نوبیان کوی اوددوی دبیدارولو دپاره دوی ته دنړۍ دوران نغمی اوروی دترجمی په‌ابتدا کښې ئې په‌پښتو نثر یوه عالمانه تبصره هم لیکلې ده چه په‌دې اعتبار دی‌دنثرلیکو نکو په ډله کښې هم حسابیږی. دا کتاب په(۱۳۱۰ه) کښې چاپ شوی‌دی غلام‌محمد دنثر بیت په‌موضوع کښې دمولانا حالی یو بل کتاب‌هم په‌پښتو نظم‌ترجمه کړی‌دی، دا کتاب ډیر خوز اوپه‌ښه موضو کښې دی. غلام محمد دباڼغانو دخواندنه کولودپاره دپښتو یوه قاعده هم لیکلې ده: چه(محمدی قاعده) نومیږی غلام‌محمد په‌شعر کښې روانه طبع‌لری او دپښتو یو ویش پښتون اواجتماعی شاعر ګڼل کیږی‌وایی (۱) چه‌ده دورمړی‌ژبی یوګرامر هم لیکلی دی.

شیراحمد شیدا :دی دیوه‌ړوکی مدحیه کتاب خښتن دی: چه‌په‌هغه کښې دسواد صاحب) هډی صاحب، مانکی‌صاحب دمدح اوصفت بیان دی.دا کتاب په(۱۳۰۰) کښې چاپ‌شوی دی وځو بیته ئې‌دادی :

نجم‌الدین اخوند‌صاحب نوم‌ئې‌مشهور دی — درست کابل زمین له فیضه‌ئې معموردی
په مسجد کښې دتند ورسازی مقام — لری‌دی‌همیشه عزت او سرانجام
بیا په ژمی کښې راځی په ننګرهار — له‌قدومه ننګرهار کاندی ګلزار
په کشور د شریعت لکه چراغ — صنوبر غوندی‌ولاړ ددین په باغ
هغه دم کښې‌چه دی سرشی‌په بیان — مرغلری تو یوی درومرجان

محمدامان : په‌قام داوی اوقند هار دخوادی. په‌پښتو کښې یو وړوکی دیوان لری چه‌په(۱۲۸۳ه) کښې‌یې ختم کړی‌دی، اشعار ئې عشقی دی وایی ،

ستا‌پرمخ شیدایم لکه توربورا پر ګل — چه‌دحسن سیال دې نشته‌تر‌هراته تر کابل

(۱) دپښور داسلام کالج دکتابو فهرست .

احمد گل: دمشرقی دگلایی حسن خیل مومند دی، دزیږیدوتاریخ ئې (۱۲۵۸ھ) سنه ده، دی یوعالم اوفاضل سړی ؤ. دتحصیل دپاره ئې دهند، مصر اونورو ځایو سفرونه کړی دی، عمر ئې پهدرس اوتدریس تیراوه، ده ته خدای دشعر ویلوښه طبع ورکړې وه درحمان بابا پرسبک ئې ځینې رباعی گانی اونورمای اشعار ویلی دی. عربی فارسی، اردو ژبې ئې زده وې مگر پښتو خوږه اوپر لذته بولی:

که زده می عربی، فارسی اردو په زړ کړته    پښتو ده پر لذته

داحمد گل په شعر کښې دپښتو والی ښیگړې، ازکخیالی، روانی اوخوږوالی لیدل کیږی لکه چه وایی:
سپینې می دمغزولری دانی دمرغلرو    درنگا رنگ مې خبرو
دطبع په مخزن کښې مې پراته درومرجان دی    تللی په میزان دی
نرمه پرخه چه هراز ه شوه له گله    دادستا په برکت شوه احمد گله
دنرمی اولطافت په مدرسه کښې    شبنم داوظیفه ستانه زده کوله

احمد گل پرته له عشقی اشعارو څخه په دینی: تصوفی، اخلاقی اوعلمی خواو کښې همښه اشعار لری دعلم په ښیگړو کښې وایی:
چه په ورانگوئې دمځکی سروشان دی    خپله وروره هغه علم او عرفان دی
وایی چه احمد گل د(دیوان احمدی) په نامه خپل دیوان دامیرعبد الرحمن حضور ته وړاندی کړی، اوهغه انعام ورکړی و. ده له پښتو اثارو څخه د کوثر القصه، دپښتو خطبی، دنیمولا فصه، دمولانای روم دمثنوی ترجمی اوځینې نوردی. دی ځینې چاربیتی اوغزلی هم لری، بدله ئې په(هاروبهار) کښې راغلی ده، دی وایی:
زما قوم چه پښتون دی    اوپه دوی کښې می ژوندون دی
په پښتو ژبه اشعار    ځکه وایمه دربار

عبد الباقی کاکړ: دقندهار دخوایو متصوف عالم و. تر(۱۳۱۹ھ ق) پوری ئې دپښتو ژوندیقینی دی. وایی چه ده په همیشه ددینی احکامو تبلیغ کاوه اوپه دې مقصد ئې دپښتو په اوږده مثنوی د(تهذیب الواجبات) په نامه یولوی کتاب هم لیکلی دی. ددې کتاب اکثر مطالب دینی اواخلاقی دی ځینې تاریخی حالات هم لری. تخلص ئې «افغان» دی. دافغان زړه داسلامیت اوپښتنولی. له درد څخه ډک اوپه دې درد دردمن ودغه جذبات ئې په کلام کښې ښرگندی لکه چه وایی:
رااخستی می شهبازدی خپل عشق رباب وهمه    نغار دداسلام کوک شوه دواړه برېته تاوومه
شخه نغمی څه ترانی دی قسم قسم آوازونه    قمریان پرشاخونا ستی مطرب نوی کړه سازونه
دسلطان محمود له وخته ماڅنلاله تیره توره    که می جهل رهبر نه وای پرمخ تلم تردور صوره
اه هغه وخته تراوسه بېحسابه گزارونه    دافغان دآس په نعل ایری شوی دی لوړغرونه

عبدالله پوپلزی: دقندهار په خواو کښې زیږیدلی دی په پښتو او فارسی کښې دشعر دیوانونه لری تخلص ئې «محزون» ؤ سربیره پردغو یوه مثنوی چه (عبرت نامه) نو میږی هم ورنه یادگار پاته شوی ده، اشعار ئې عموماً عشقی اواخلاقی دی، دی په (۱۳۳۳ھ) کال وفات شوی دی. عبدالله په خپل شعری سبک کښې دحمید پیرو معلو میږی اوهغه ئې دیرستایلی دی ځینو نورو شاعرانو ئې هم په تنقیدی سترگه کتلی دی دادوه بیته ئې ولولی:

سمندرغندی په اور کښې دروڼ شوی یم
دآشنا په غم خراب او محزون شوی یم
راته مسلك شو كربلاد زړه له لاسه
په سرو وینو کښې د زړه غټې وهمه

سعادت خان،(۱) دخوشحال ختك په اولاده كښې د (۱۳۰۰ هـ) دحدود ويو پښتون شاعر دی. پلاریې افضل خان نومیده داافضل خان دتاریخ مرصع له افضل خان څخه پرته بل افضل خان دی. دی څه موده په (جمالګړی) کښې اوسیده نوځکه یادری هیوزد جمالګړی په افضل خان یاد کړی دی. سعادت خان دخپلو دوو وروڼو اكبراشرف په فراق کښې چه په توروا وبو کښې بندیان شوی وو. یو غزل ویلی دی چه یو دوه بیته یې دادی:

فلك څه نا كړدې ماته كړې دوخاري
چه می ستر ګی په ژړا کښې فواړې شوې
نوی نوی غم راځی زما په خوا ته
خبرنه یم دغم ماكره ډیری شوې

اسدالله: دپورته سعادت خان مشرورور دی. دی هم دپښتو شاعروُ دخپل وروڼو په پلتون کښې یې ځینې اشعار ویلی دی چه دادوه بیته یې لاس ته راغلی دی:

روڼی حلقه نن له دواړو سترګو په ګریوان دی
خدایبز وداشرف اکبرماتم اوردنیران دی
نن د قیامت ورځ ده له فیامته لابد تر ده
تللی دغه بنه بستان د مینی په خزان دی

اشرف: ددغه سعادت خان ورور دی: چه په توروا وبو کښې بندی وو. دی هم دپښتو شاعروُ یو غزل ئې مونږ لیدلی دی چه یو دوه بیته ئې دادی:

موده وشوه چه سلام دیار رانغی
خبرنه یم چه په څه ربیار رانغی
ګـلدسته می خاطرنن پژمرده ده
چه خبرراته دورورا وپلار رانغی

اكبر: دی هم دسعادت خان دتورو او یو بندی ورور دی، دجدایی په درد کښې یې ډیر اشعار ویلی وی. مـګر مونږئې صرف یو غزل لیدلی دی چه یو بیت ئې دادی:

خدایه داشپه بـه دغم که رڼاشی په ما
که به مدام راباندی بل دغمواوری (۲)

منشی احمد جان: منشی احمد ددې دورې دوروستی برخی یو پیاوړی، نومیالی ادیب او دپښتو دادب داسمان یو روښان ستوری دی. وایی چه دی وعالم او فاضل سړی وو او په پښتو کښې دیو فـکر او مسلك خاوند ودمنشی احمد شعر کم لیدلی شوی دی مګر په نثر کښې ډیر آثارلری. دی دپښتو په نثر کښې دیو نوی طرز او سبك موجداو جوړ وونکی دی. هغه سبك چه دخوشحال په کورنی کښې جاری وو، هغه ئې اصلاح کړی اوخوندور کړی دی، دد، دنثر ادبی مکتب له (۱۳۰۰ هـ) په خوند پوه کړی دی، په نثر کښې قوی لیکونکی او یو څ لیکوال دی. تاریخی قصی او داسی نور خوازه خوازه آثاریې پښتو ته وړاندی کړی دی لمړی کتاب یی چه دښوښو قصو مجموعه ده (ګنج پښتو) نومیږی اِلبې له انـګریزی څخه (دافغانستان تاریخ) په خوږه پښتو ترجمه کړی دی.

ددې کتاب نثرډیر خوږ، دپښتو په محاوره برابر، په ټوله معنی یو خوندور او صحیح نثردی. له «تاریخ فرشته» څخه دسلطان محمود تاریخ هم دده. ترجمه ده د«قصه خوانی» «ګپ»

(۱) دسعادت خان یو زوی چه فتح محمد خان نومیږی اوس هم ژوندی او یو بیدار پښتون دی دخپلو نیکونو ډیر قیمتی آثاریې ساتلی دی.

(۲) دا اسدالله ـ سعادت خان ـ اکبر، اشرف اشعار [illegible] کتاب [illegible] دی

اودهغه‌دغه «په‌نوم دوه نور کتابونه هم لري چه‌ډیرخوازه دلچسپ اود پښتو دیوخواږه
نثر نمایندګي کوي، د ده نثر یوه ټوټه داده درخاني په سوات کښې د(بري بازدرې)
دیوطاوس‌خان نومي پښتون لوروه اودپایا وخان نومي یوپښتون هلک چغله وه‌یوه‌ورځ
ددرخانۍ دترور دلور واده ؤ په‌هغه کښې ئې دکوزي بازدرې، په‌یو آدم‌خان نومي خانزاده
باندې سترګي خوږې شوې تې له دواړه لاسه خیبري هغه‌هم پرې زړه بایلود. دې‌اور
داسې لمبه‌وکړه چه‌دواړه دخلاصېدو اود میلمنو درخصتېدونه پس‌دواړو په‌لار کښې هرومرو
یو بل نه په غلاغلا کتل، ماسخوتن په‌حجره کښې چه آدم‌خان یوه ګوټه رباب ووهلو نو یو
سوړ اسویلې ئې وکړ، اومیرو بلو خپلو خوږو یارانو ته‌ئې دزړه حال ووې، دهغه دامراد
ؤ چه په دې‌شپه دآشنا دیدن ته لاړې (له‌قصه خوانۍ ګپ‌شخه)

تبصره: خوازه عبارات، پره‌کړې، لنډې لنډې جملې، ښه‌اداء، سلاست او روانې دلغاتو
سوچه والې، دمتلونو، اصطلاحاتو، محاورو استعمال ددې نثر مهم خصوصیات دي، په دې
نثر کښې دبلې ژبې رنګ نشته او‌عبارتو ادبي خوږ والې ئې زیات دې.

نو په‌دې اعتبار منشي احمد ته‌په ۱۴ پېړۍ کښې دپښتو نثردنوي طرز او سبک مؤسس
وایو اودیونوي ادبي مکتب خاوند ئې ګڼو.

میر احمدشاه رضواني: ددې دورې له‌ومیالو ادیبانو څخه یو قاضي میر احمد شاه
رضواني دی، رضواني هم دپښتو ژبې یو پیاوړې ادیب، قوي او زبردست لیکوال دی، په نثر او نظم
دواړو کښې لوی لاس لري. دی دپښتو متخصص اودا کثرو پښتو زده کوونکو دپښتو استاد و
په‌انګریزي هم پوهېده اود «شمس العلما» لقب ئې حاصل کړې ؤ. رضواني په (۱۲۷۹هـ)
دپېښاور په (اکبرپوره) کښې زېږېدلې دی. ده په پښتو کښې مهم تالیفات کړي دي
لوی خدمت ئې دپښتو ژبې یو ګرامردی چه «وافیه» نومېږي او په‌اردو ئې لیکلې دی. دا
کتاب دپیرمحمد دمعرفت‌الافغاني څخه‌وروسته دپښتو اول ګرامر ګڼل کیږي دوه نور کتابونه‌ئې
«شکرستان افغاني» او «بهارستان افغاني» نومېږي. دا دواړه کتابونه په تعلیمي
سلسله کښې داخل اودمکتبونو دپاره لیکل شوي دي. نظم او نثر دواړه لري، د ده
خپل نثر او نظم هم پکښې شته، مګر اکثر انتخابات دي. سربېره پر ده دغو رضواني
دشعر یو دیوان هم لري رضواني یوه‌ښه اوبیدار شاعر دی، دقوم دبیدارۍ دپاره ئې
ځینې انتباهي اشعار ویلي دي رضواني دپښتو په نثر کښې هم اوله درجه سړی دی. دلیکلو
سبک ئې دمنشي احمد دسبک پشان دی او دواړه ددې لارې قوي ملګري دي.
دده یوشوشعرونه‌دادي.

که‌معنی هیڅ دره کښې نه‌وي په‌خپل ځان — په نیکه په ټبر نیکه به نشي خان
اصالت په اهلیت په لیاقت دی — نه‌په‌دې چه‌فلانکې خان او فلانکې خان
که پښتون شي ګدا ګرد کل جهان — غیرت ئې تللې دد وډې دی تر یونان
هسې ښه مهمان نوازه خلک نشته — لکه خدای چه پیدا کړدي افغان



رضواني پرته له دې چه یوښه عالم اوفاضل ؤ، دپښتو فارسي اوعربي یومنلي شوی شاعر
او ادیب هم ؤ. درضواني دلوی نه‌لوی کار دادی چه ده د «صوبوسرحد» دکال نو

په نصاب کښې پښتو ژبه هم شامله کړه او په وطن کښې ئې د پښتو د تعليم اوزده کړې روح پيدا کړه. دا رنګ د پنجاب په يو نيورسټئ کښې ئې پښتو ژبه د نورو ژبو په قطار کښې ودروله او په دې وسيله ئې د پښتو د پاره يو جاودانی خدمت وکړ. رضوانی په عربئ کښې هم ډېرې قصيدې لرئ، او په فارسی ئې هم ښه اشعار ويلي دي. د کابل په صفت کښې وائي:

کابل ای آنکه همه لطف وتماشا باتست وی که از هر طرف آميزش دلها باتست

مير احمد شاه د دې يرو آثارو خاوند دی چه ټول ئې تقريباً (۲۰) ته رسيږي يو څو مشهور کتابونه ئې دا دي:

۱- جزرئ په پښتو نظم ۲- تاريخ کافرستان ۳- آثار قديمه

۴- تاريخ افريد ۵- سفر نامهٔ رضوانی ۶- مجربات رضوانی

۷- تحقيق الالسنه ۸- ديوان وقصايد رضوانی

رضوانی د (۱۳۵۲ هـ) کال په رمضان کښې وفات شوی دی

احمددين: يو طالب او شاعر دی، په اصل داشنغرو ځوزيانه اسټو ګه ئې په سوات کښې وه په آخرو وختو کښې د خپل شاګرد (صحبت خان) سره په (مردان) کښې او سېده چه بيا هم دغلته وفات شو. دی په طالب احمددين مشهور دی، غزلې او رباعی ګانی ئې زياتې مشهورې دي دده د رباعيانو وغزلو د ديوان اول جلد څو کاله پخوا په پېښور کښې چاپ شوی دی. ده په ملی وزن هم ښه اشعار ويلي دي اشعار ئې عشقي او اخلاقي دي. احمددين د ۱۴ پېړۍ داولې برخې شاعر ګڼل کيږي يو دوه بيته ئې دا دي:

د بلبلو بې دلانو آزار مه کړه دا ګلزار که دې نن وي سبا به نوي

دلعلو نو د مرجانو سودا ګره خريدار که دې نن وي سبا به نه وي

۱۴۴

ملا نعمت الله: د پېښور د نوښار او سېدونکی و، دی د پښتو يو زبردست شاعر او په قصو او افسانو کښې د استادئ مقام لري. که څه هم د نصر الله او سباک په پښتو کښې لا د نه وړاندې پيدا شوي دي او ډېر پخوا هم چه د رېړې دورې له اول څخه د اسباک جاری دی مګر نعمت الله د رومان نويسي سبك خپل اوج مقام ته ورساوه، د يو مسلك په حيث ئې دالارونيوله او قصور او افسانو ته ئې يو خوندورا و خوږ رنګ ورکړ نو ځکه ئې اعتبار ده ته موږ بر دې دورې د افسانه نويسي استاد وايو. ده ډېرې عشقي او رزمي افسانې په پښتو نظم ليکلي دي، د سلاست، خوږ والي او روانئ په لحاظ هره يو شاهکار ګڼل کيږي. ده پرته له قصو څخه غزل او رباعي ګانې هم ويلي دي مګر هغه مستقل صورت نه لري او ځای په ځای نشر شوي دي. دده افسانوي شعر ډېر و ستايلو وړ دی. ده قاعده ده چه د هر داستان په سر کښې يو څو بيته د تشبيب په ډول وائي چه ډېر ساحرانه کيف پکښې پروت وي مثلاً د ليلی او مجنون داستان

مشك افشان قلم زما لکه طوطی نن په چمن د عاشقی کوی مستی نن

په ورو ورو راته د عشق وايی بدلی تماشی ته ژ ا. او چنی شوی بلبلی

په افسون چه کړی آغاز ه افسانه عندليب شی ورته پور ته مستانه

د تقرير مارغه چه والوزي په باغ په ديدن ئې دلاله زړګی شی داغ

---

(۱) د کابل د مجلې په (۱۷۸) ګڼه کښې د سيد عظيم شاه له مقالې څخه.

په فصاحت چه نزاکت له خولې وباسي — له بوستانه بوراګان پسې راباسي
مؤرخ د تواریخو نکته سنج — پدې ځای کښې سپردې دبیان ګنج
که ملانعمت الله ته مو بز د پښتو فردوسي ووایو ، بې ځایه به نوي !

ځکه که دده سره دفردوسي په شانه برخه هم د کوم سلطان مرسته وای ؛ نو له هغو نه به ئې ښه اثر ولي وای ، دملانعمت الله مشهور کتابونه چه چاپ شوي دي دادي : دليلي او مجنون قصه ، دنیمبولا اوتیمبولا قصه دفتح خان قصه دموسي او ګلمکۍ قصه ، دحضرت علي جنګنامه دحاتم طائي قصه ، شاهنامه ، اوالف ليلي اوداسې نور ، دملانعمت الله دژوندزیاته حصه د(۱۳۰۰هـ) څخه راپدې خواده .

اوس دنیمبولا دقصې څخه یوه نمونه و ګورئ .

باد شاهي چه دلمر لاندې تر آسمانه — پر له پسې سپوږمۍ راوخته روښانه
راشر کنده هر یو ستوری په جلوه شه — نیمبولا ستي پر ده هجر پسې لمبه شه
واوبلاباري ئې کړې دعشق له جوشه — ګاه به و به چغو سر ګاه به خاموشه
یو ګړۍ ئې قراري د و جو ده ؤ — په هیڅ کار کښې دزړګي ئې بهبودنه ؤ
که قه چاترې د مرض و کړه پوښته — چه دا شور فرباد کوي وايه له څه نه
ده بهوي چه دامې رنګ ښکاریږي زرد — کله کله به ماوي د ګېډې درد
په داهسې اوې مرض په زړه چور چوړیم — زه د ګېډې په مرض مدام رنځور یم
نه ئې شه آرام په ورځ نه په ملاستې — تصور به زنګا وه دغم په بیاستې
چه دعشق په دریاب کښې څوک لاهو شي — په جر له دعاشقۍ هله ها هو شي
چه له دې نه پرې راغې احوال سخت — سر به ئې کښېنود دغونډ په پالښت
چه دعشق سواره دچا په خونه زغاست شي — ای ملا نعمت الله کور ئې میراث شي

ملااحمدجان : د پښتو یو تکړه قصه لیکونکی شاعر دی د پېښور په (دواوه) ، کښې اوسېده زیاتې قصې ئې په نظم لیکلي دي ، ژوندئې تر (۱۳۳۲هـ) پورې معلوم دی . د ملا نعمت الله په مکتب کښې یو قوي سړی دی ؛ دالاندې کتابونه ئې په نامه مشهور دي ( دورقه ګلشاه قصه دممتاز قصه ، دشهزاده بهرام او ګل اندامی قصه ) .

دامیر حمزه داستان ، دشهزاده شیرویه قصه یوسف زلیخا ـ ملا احمد جان ځینې غزل او رباعی ګانې هم اری دا بیت ئې و لولئ :

چه دي شمع دسپین مخ کړه ورنه باه — احمد جان لکه پتنګ ورته تن و نیو
څوک سواره ګرځي په اسو حکومت کا — څوک له بدې ورځې پل ته رکاب نیسي

احمداخون خیل : د قصه لیکونکو په ډله کښې دریږي ، « دامیر حمزه » داستان ئې په ډېر خوږ نظم لیکلی دی ، د (۱۳۰۰هـ) دشاوخوا شاعر معلومیږي په دوهم جلد پښتانه شعرا کښې ئې له دغه داستان څخه یوڅو بیتونه را نقل شوي دي ، یوبل کتاب ئې چه « قیامت نامه » نومیږي هم په نظم کړي دي ،

احمد دیجګی : په قام خلیل او د پېښور په ( یجګی ) . کښې او سېده ، یو قصه لیکونکی شاعر دی . د « انیس الواعظین » په نامه ئې دپښتو په نظم په (۱۳۰۵) کښې یو کتاب لیکلی دی ، یوبل کتاب ئې « دجمجمې قصه » ده او یو کتاب ئې « قصص الانبیا » نومیږي دا بیتونه دده دي :

چه سحر بلبل آواز کا — د هجران له بابه ساز کا
فلک ځکه سر ګردان شو — پیداغم کښې داجهان شو

میرمن (۱) صاحبو عاجزه: دا پښتنه میرمن د ګل محمد بارکزی اور وه، د قندهار په اطرافو کښې اوسېده. ملې غزلې ئې ویلې دي، تر (۱۲۹۷) پورې ئې ژوند معلوم دی او څو یاد کی ئې دا دي: پرخپل خدای به فریاد کړم عوض غواړم له باری ننګوم به ګړندی
ماویلې جلګی (۲) زه خوراغله دشپې حاجت مې دی راوړی بخت غواړم پرتندی

## ننګوم به ګړندی

مولوی (۳) سیداحمد مولوی سیداحمد د کوهاټ دیو مشهور ملا زوی و. ده د پښتو متلو نو یوه مجموعه لیکلې ده. په دې مجموعه کښې (۶۷۹) متلونه دالفبا په ترتیب برابر ټول شوی او جمع شوی دي. دا کتاب د پادری هیوز دپاره (غلام جیلانی) نامي په (۱۸۷۵ع) کښې لیکلی و، چه دغه قلمي نسخه ئې اوس دلندن په موزیم کښې خوندی ده. ددې سنې له مخه د مولوی سیداحمد دژوند زمانه او یا کاله د مخه د (۱۲۹۰ه) پشاو خوا کښې معلومیږي. مولوی سیداحمد نور پښتو کتابونه هم لیکلي دي. دا کتاب غالباً د پښتو متلونو لومړی کتاب ګڼل کیږي.

میاحمد: (۴) دا سړی د مروجو علومو عالم او د پښتو ژبې یو ښه شاعر و. په احمد کلاچی مشهور دی. کورنۍ ئې دډیره اسمعیل خان په کلاچي نومی کلي کښې موجوده ده. ده د ۱۳۰۰ه په حدودو کښې ژوند کاوه او دامیر دوست محمد خان دزمانو هم عصری دی په پښتو کښې داشعارو یو دیوان لري، دده په دیوان کښې رزمیه نظمونه رباعی ګانې، چاربیتي، غزلې او نور هر دول خوندور اشعار شته.

دده دیوان یوه نسخه چه دده په خپل خط ده دپښور داسلامی کالج په کتاب خانه کښې خوندی ده. داحمد دیوان چاپ شوی هم دی او (۱۰۴) مخه دی.

دیوی چاربیتي سر ئې دادی:

| | |
|---|---|
| بیا شکلی محبوبا شوه آراسته چشمانی توری | راځی په سر ومنګولو |
| له خیاله ئې شانه کړی په مخ زلفي دوری دوری | که لیښتی د سنبلو |

سیدمحمد عمر: (۵) دا سړی د پېښور په (کوټه نومی ځای کښې اوسیده ده د ګلشن اشعار افغانی» په نامه د پښتو شاعرانو د اشعارو یوه مجموعه ټوله کړی ده. دا کتاب عشقی غزلي چاربیتي او نور اشعار لري، په دې کتاب کښې د هر شاعر د شعر سره دهغه مختصر حال هم په پښتو نثر لیکل شوی دی. نو ویلای شو چه دا کتاب د پښتو شاعرانو یوه مختصره تذکره هم ده. ددې کتاب یوه نسخه داسلامیه کالج په لایبریری کښې شته. په خپل سیدعمر هم شاعر و. او ښایي چه خپل اشعار ئې هم په دغه کتاب کښې راوړي وي.

غلام محمدخان خټک: دخان فتح زوی او دجهانګیری کلي دخټکو د کورنۍ یو مشهور شاعر و، په پښتو فارسي او اردو ژبو کښې ئې اشعار ویلي دي دده د مرګ نه پس دده د کلام څه برخه د(رموز خټک) په نامه محمدزمان خان خټک طبع کړي دي چه د پښتو اردو او فارسي د یر خوند

---

(۱) پښتنې میرمنې (۱۲) یوزیارت دی (۳) فهرست بلومهارت.
(۴)(۵) فهرست مولوی عبدالرحیم.

ناك اشعار لري.

(۱) امیر علیخان: د جهانګیري په حسن خیلو کښې یو ښه ادیب او شاعر وه له ده څخه اته قلمي کتابونه پاته شوي دي او دا دي:

۱- زړه خوږي مسلمان په نظم ۲. کچکول د امام وردي «رح» د قصیدې ترجمه او شرح ده ۳ - د اخوان الصفا په نظم او نثر پښتو ترجمه ده (۳۴۷ مخه) ٤- سحر نی ستوري ۵- مقامات امیر د پښتو محاوراتو او لغاتو خزانه ده ٦- ښې خبرې له عربي څخه ترجمه ده ۷- سرحدي ګل ۸- خوږه وروولي دامیر یو څو اشعار دا دي (۲):

دو دسته سلام جانان ته په سبا د سحر وایه — د زخمي زړه ارمانونه د وفا په نظر وایه

د زمزم یو ه څاڅکي جام لبریز دي ما د پاره — لا به ولي زما نشي ای ساقي د کوثر وایه

علامه ما ته ول علمونه د عرفان به نور نشار کړل — ته تر عمره له استاذه سبق زید او بکر وایه

محمد رفیق شمس الفلك: (۳) دا سړی د (مجموعه دیوان شمس الفلك) په نامه یو ښه اثر لري. دا مجموعه دري برخې ده. اوله برخه د اخلاقو بیان دی.

دوهمه برخه په پښتو کښې د قصیده امالي شرح ده دریمه حصه خالص غزلیات دي

محمد رفیق اول د پېښور په (اکبرپوره) کښې اوسیده. بیا (مردان) ته ولاړ.

یو عالم او شاعر سړی و. مولوي عبدالرحیم په خپل فهرست کښې لیکي چه دده کلام پوخ او قوي دی او دغه مجموعه ئې د پښتو ادب یو قابل قدر کتاب دی» محمد رفیق دامیر عبدالرحمن خان په وخت کښې کابل ته راغلی و. او امیر دده د علم او ښې طبع یوه ډېره قدر کړی و دی تر (۱۳۳٦ھ) څخه دمخه وفات شوی دی دده دغه دیوان نه دی چاپ شوی مګر یوه قلمي نسخه ئې په اسلامیه کالج کښې موجوده ده.

نعمان الدین احمد: دی د پېښاور د (سرې ډېرې) کاکاخېل میا دی. یو بوه او بیدار سړی و د پښتو ژبې سره ئې ډېره مینه لرله. ده د پښتو کتابونو د چاپولو او لیکلو د پاره ډېر کوششونه کړي دي. دی په خپله هم په پښتو کښې د تالیفاتو خاوند دی.

یو کتاب ئې (ظفر النسا) نومېږي چه د ښځو د ښوونې د پاره ئې لیکلی او په (۱۳۲۲ھ) کال په هند کښې چاپ شوی دی. دارنګه د (ابن بطوطه سفرنامه ئې هم په پښتو ترجمه کړه ده مګر دا مهم اثر ئې مونږ نه دی لیدلی.

د نعمان الدین په کورني او ټبر کښې نور هم د پښتو لیکوال شته دده ښځه هم په پښتو کښې د (زینت النساء) په نامه یو کتاب لري.

مشیر الدین: دا سړی د دغه نعمان الدین کاکاخېل تربور و په اخلاقو کښې ئې د (مشیر الاخلاق په نامه یو کتاب جوړ کړی دی او لکه چه چاپ شوی هم وی

دده یو بل کتاب (تاریخ برامکه افغانی) نومېږي.

محمد یوسف میا: دا شنغرد (سرې ډېرې) کاکاخېل میا دی. چه د نعمان الدین احمد خوریی وده د نذیر احمد یو کتاب په ژپښتو به ترجمه کړی دی چه «توبة النصوح» نومېږي

---

(۱) (۲-) د کابل د مجلې په (۱۷۹) ګڼه کښې د محمد اجمل خټك له مقالې څخه

(۳) (٤) د مولوي عبدالرحیم فهرست.

دا کتاب په (۱۳۲۲ هـ) کښې چاپ شوی دی ددې کتاب یوه چاپي نسخه د اسلامیه کالج په کتابخانه کښې شته مولوی عبدالرحیم په خپل فهرست کښې لیکي «چه ددی کتاب ژبه پاکه او فصیحه ده، او په نثر کښې د پښتو ادب یوه غوره نمونه ده» ددې سرې په باب کښې مونږ له دینه زیات څه معلومات نه لرو مګر د مفتی عبدالرحیم په قول، دی د پښتو یوه غوره نثر لیکونکی ګڼل کیږي.

حسیب ګل میا: داسړی د کاکا صاحب د زیارت اوسېدونکی او یو شاعر او عالم سړی و. دی د (۱۴۰۵ هـ) وروسته وفات شوی دی. ده په پښتو کښې ډېر کتابونه لیکلی او ترجمه کړی دی چه څه ئې دا دی. ۱ - «د اصحاب کهف قصه» چه د افع الغم نومیږي.
۲ - «عجیب وغریب قصه» ۳ - د شمس و قمر قصه چه له فارسی نه ترجمه ده.
٤ - «ګلدسته حکایات» چه له اردو نه ترجمه ده ٥. «زاد الفرح» د مفرح القلوب ترجمه ده
٦ - «بیاض» په دغو ټولو کتابو کښې ئې «بیاض» یو مهم کتاب دی. دا بیاض (٥۰۰) صفحې دی او د پښتو او فارسی اشعار لري چه څه د میا صاحب خپل او څه د نورو شاعرانو چون شوی اشعار دی. غرض دا چه د حسیب ګل میا بیاض په پښتو ادب کښې یو قیمتی کتاب دی او د ډېرو پښتنو شاعرانو نومونه او د کلام نمونې ئې راسا تللی دی.

## یو څو له نامشهور شاعران

د حسیب ګل میا په بیاض کښې د ځینو مشهورو شاعرانو اشعار هم شته لکه رحمان - حمید خوشحال هجری - کامګار - یونس - سکندر او نور مګر مونږ خبر ورداده چه د ځینو داسی شاعرانو نومونه او د کلام نمونې هم پکښې راغلی دی چه هغه تر اوسه مونږ ته معلوم نه وو نو دادی د دغو شاعرانو نومونه په لاندې ډول ښوول کیږي:

معطر - نجیب - عبدالوهاب - سید - آدم - رشید علی جنګ - نادر - احسن - شاه غریب شمشیر - نور محمد شمس الدین - طلب شاه - خادم - مزین - مسعود - میا نګل (۱)

## ددی دوری د ځینې نورو شاعرانو نومونه

~~وروسته~~ دلته مونږ د هغو شاعرانو نومونه او آثار ښیو، چه د هغوی آثار، کتابونه او یا اشعار لیدل شوی دی دا شاعران چه وروسته بیانیږي ټول د څلورمې دوری شاعران دی په دوی کښې څوک قصه لیکونکی څوک دیوان والا او څوک رزمی او عشقی شاعران دی د اختصار په غرض ئې زیات تفصیل نشو کولی - تش نمونه ئې ښوول کیږي:

د قصه لیکونکو له ډله: حسن د ګلزار حیدری لیکونکی قاضی عبدالرحمن د افسانه دلپذیر لیکونکی (په قام بابوزی او د سوات دی) عجب خان د پېښور د پچګی دی یوه قصه ئې په نظم کړی ده او مناقب غوث پاک ئې هم لیکلی دی. بو علیشاه، د مناقب الاعظم او د فرعون د قصې لیکونکی فضل ربی یوه قصه ئې لیکلی ده ابراهیم شاه. د (قصهٔ نرابان) لیکونکی سید حسین، د جنګنامه

(۱) د بیاض نسخه ښاغلی محمد عبدالقدوس لیدلی ده او دغه ټول معلومات د هغه په قلم د «پښتون» په مجله کښې نشر شوی دی. (د ۱۷ نومبر ۱۹٤٥ ع شماره،)

حسنین لیکوونکی جلات خان - یوه قصه لری رحمت - جنگنامه ئی لیکلی ده امان گوجراتی سفیدشاه عبدالکریم دمحبوبا او جلات دقصی لیکوال - محمد حنیفه دحسن حسین قصه ئی دپښتو په نیم منظوم نثر لیکلی ده حیدرخان دحاتم طائی دقصی لیکوونکی خالد - دسلطان محمود قصه ئی لیکلی ده ، عبدالغفار «تایب» د (محبوبه شام) او عجایب جهان او نورو کتابو جوړوونکی ؛

د دیوان والاو ډله : شاه افضل محی الدین - قلمی اشعار لری - عبد العزیز (۱) قلمی دیوان لری یار محمد د دیوان خاوند دی فیض الله (دقندهار دی) عبیدالله (دننگرهار دی) عبدالعزیز معلم دپښوړی فضل شاه دیوان لری -

دینی لیکوونکی : مولوی حمیدالله دراحت القلوب لیکوونکی - محب الدین دپښتو قصیدهٔ بُردی لیکوونکی ملا شرف دپښتو قصیدهٔ بردی لیکوونکی - عبدالکبیر دمعجزاتو کتاب ئی لیکلی دی گل محمد دضابطه میراث جوړوونکی محمدیار صاحبزاده دکلات توخی د قطب شاه کیمیای سعادت لیکوونکی عبدالرحیم دقایق الاخبار ئی لیکلی دی په دی ډول نور «دینی او قصص» کتابونه هم ډیر دی چه ټول دلته نشو بیانولای لکه هزار مسایل حقیقت اسلام او داسی نور دی کتابو بولست ښاغلی «زمریالی» د ۱۳۱۸ په کال سالنامه کښی نشر کړی دی البته چه هلته ئی کتلای شی

ملی شاعران چه عشقی او نور اشعار لری :

ملا محمد کرم داسی دعبدالله محزون استاد ؤ او هغه د شاعرانو په ډله کښی ذکر کړی دی محمد کریم - حاجی اختر ملا عبدالرحمن - حلیم بابا - سید کرم شاه غلام صدیق عبدالسلام قندهاری طالب - ملا خواجه محمد - ملا حفیظ - ملا باز محمد - ملا نظر - سید محمود - امیر جم الدین - ملا عبدالعلی د دی شاعرانو اشعار په «بهار جانان» کښی راغلی دی او ټول دقندهار دخوا دی

گل احمد - سید میر - سعدالدین - زین الدین - محمد رفیق - داراشاه - اسلم شاه - خدابخش - اکرم خان - قمرالدین ، اعظم الدین - میرزا محمد د دې لسو تنو اشعار په بهار نوروزی کښی شته او ټول دپښور د خوا معلومیږی .

سحر گل - دننگرهار میا گل دباجوړ غریبی ، دننگرهار دبټی کوټ **خی د (ننگرهار) معروف شاه - میرباش محمد شریف (دلعلپوری) باچا گل دپښور زاهد خان محمد حسن (دمیمونې چاربیته ئی لیکلی ده) سید عباس - میر دل - غلام محمد دوواې - زهین - سلطان - رمضان - فضل رحمان - (دپښور دی) یعقوب (دلغمان) ملنگ - میرحضرت - ... آزات خان مسکین - محمد میر - سکندر شاه - جمع خان دکامی - تسلیم دهزار ناو اسم دکونړ - بهرامی دتنگاو گل دچپرهار - یادونه یې دې ډول نورهم دچاربیتو او غزلو شاعران دیر دی ، چه ټول بیان دلته گران دی .

---

(۱) عبدالعزیز او یار محمد دقندهار دخوا او روستنی شاعران دی (۱۳۵۰ ه) شاید ژوندی وو دیوانونه ئی په پښتو ټولنه کښی شته .

## په دې دوره کښې د پښتو ځینې نور کتابونه

ترانهٔ محفل: (۱) یو پښتو کتاب دی. د پېښور د اسلامیه کالج په کتابخانه کښې ئې نسخه شته دا کتاب په ۱۳۳۶ هـ کښې د مخه لیکل شوی دی، او غالباً په دادې چه نظم به وي. مګر مصنف ئې معلوم نه دی

شوکت افغانی: (۲) دا هم د پښتو یو کتاب دی چه د اسلامی کالج په کتابخانه کښې ئې نسخه موجوده ده، مګر لیکونکی ئې نامعلوم دی.

عنوان النصایح: (۳) دا کتاب د اخلاق محسنی پښتو ترجمه ده. خو مترجم ئې معلوم نه دی. یوه نسخه ئې د اسلامیه کالج د کتابخانې په فهرست کښې ذکر شوې ده.

زینت النساء: دا کتاب د نعمان الدین کاکا خیلی ما ینې جوړ کړی دی.

زمار سول پاک: دا کتاب «د پیغمبر اسلام» د کتاب پښتو ترجمه ده چه په (۱۳۴۸ هـ) په لاهور کښې چاپ شوی دی. مګر مترجم ئې نامعلوم دی.

## د دې دورې عالمان، بزرګان او ځینې نور ادیبان

په هره دوره کښې ځینې پښتانه عالمان او مشران او د فکر خاندانونه وي، چه د هغوی حیات او ژوندون د هغوی کارنامې او وینا وې د پښتو په ادب کښې ضرور خه نه څه تاثیرات لري، نو په دې اعتبار دلته یې چه د دې دورې عالمان او او ادیبان هم څو مره چه معلوم دي بیان کړو.

د سوات عبدالغفور صاحب: په قام صافی او د ۱۳ پېړۍ یو لوی عالم روحانی بزرګوار شخص دی، دی په (۱۲۱۳ هـ) په سوات کښې زېږېدلی او بیا په (۱۸۷۷ ع) کښې وفات شوی دی، (۴) د ده فیض او برکت په ټوله پښتونخوا کښې خور شوی او ډېر خلق ور نه مستفید شوي دي. سوات صاحب یو لوی مجاهد او غازي سړی و. د پښتو ډېرو شاعرانو لکه پایاب، ولي محمد او نورو ده د غزاګانو په بیان کښې خوازه اشعار ویلي دي سوات صاحب د ټولو پښتو د پاره د دین یوه رڼا وه چه په دغه رڼا کښې ډېرو خلکو خیلې ورکې لارې موندلي دي، په شریعت پابند او یو لوی روحانی پښتون ؤ. د قوم د اصلاح د پاره د ده وجود کیمیا وه د ده په مریدانو کښې هم ډېر لوی لوی خلق لکه هډې صاحب، د مسهې صاحبزاده صاحب، د کربوغې ملا صاحب، مانکی ملا صاحب او داسې نور خلک شته. وایي چه سوات صاحب د مثنوي په ډول په پښتو یو مناجات هم لیکلی ؤ. مګر له بده مرغه چه د دې لوی پښتون پېشوا اشعار مولاس ته نه دي را رسیدلي. د ده مزار د سوات په (سیدو شریف) کښې دی.

فیض محمد اخوندزاده: د لوګرد مسهې په صاحبزاده صاحب مشهور او یو عالم، فاضل سړی و د طریقت سلسله ئې چلوله. سوات صاحب ئې مرشد او استاذ و. دی د امیر شیرعلیخان په وخت کښې ژوندون اشو د هغه معاصر دی. دی یو ښه عالم، مجاهد او روحانی سړی و.

فیض محمد اخوند زاده هر کله چه د خپل پیر په افکارو رنګ ونو په ۱۲۹۳ هـ کال ئې د (روضة المجاهدین) پرنامه په پښتو مثنوي یو کتاب ولیکه، دا کتاب ټول د جهاد په روح

---

(۱) (۲) (۳) فهرست عبدالرحیم. (۴) تاریخ ریاست سوات.

لیکلی شویدی او داستقلال دساتلو یو لوی درس دی چه په پښتو کښې خورا قیمتی کتاب گڼل کیږی (۱) په دی کتاب کښې تحسینی ښه اخلاقی او تبلیغی مضامین هم شته، دملت دیووالی او د پښتو داتفاق تبلیغ کوی لکه چه وایی:

همه واړه یو وجود شی. په طلب کښې دمقصود شی.

---

دده شعر عالمانه او روان دی، د برقرآنی مضامینو چه په پښتو شعر کښې بیان کړی دی ځای په ځای دمسلمانانو دپاره دعسکریت او تور کښی ښیگړی بیانوی، په یو ځای کښې ئې هغه صفات او اخلاق چه یو مسلمان عسکری مشراو سرلښکردپاره لازم دی ښودلی دی چه دلته ئې دده دکلام په نمونه کښې رواړو:

په لښکر کښې چه افسر وی / می باید چه دلاور وی
شجاعت لری کرار وی / په صفونو کښې جرار وی
هم عاقل او مدبر وی / ښه دیندار ه مذکر وی
دلسوزی لری ناصح وی / هم انصاف لری صالح وی
سخاوت لری ښه دادکا / له لښکر سره امداد کا
چست چالاک وی ثقیل نه وی / هم ظالم او بخیل نه وی
کبرجن او جاهل نه وی / بد کرداره غافل نه وی
له لښکره باخبر وی / په خپل کار کښې با هنر وی
ستمگاره بدخوی نه وی / هم یوچ خولی بدگوی نه وی
تېښته نه کاندی صابر وی / په نعمت درب شاکر وی
له سلطانه طاغی نه وی / له الله نه باغی نه وی
د پادشاه په خدمت راست وی / د الله په طاعت راست وی
نه شراب خوری نه زانی وی / نه رشوت خوری نه جانی وی
حکومت ئې سرا سر / په کتاب وی برابر
داسی نه چه دولت تول که / دی خپل ځان وربا ندی موړ که
عالم واړه دربدر کا / خپل مختور، خاوری په سر که

---

نجم الدین اخوندزاده: په هډې صاحب مشهوردی . یو روحانی سړی و، دسوات صاحب مرید او دهغه په مریدانو کښې دزیات شهرت خاوند دی، هډې صاحب هم لکه د خپل پیر دیو لوی مجاهد او غازی په نامه یادیږی تول افغانستان یې له فیضه بهره مونده لی ده لکه چه دتگاو ملاصاحب دبټخاك حضرت صاحب، دشوار وصوفی عالم گل صاحب، دسرکانو میاصاحب، دترنگزو حاجی صاحب، دچکنور ملاصاحب، داسلامپور پاچاصاحب او داسی نور یې مشهور اونومو ړی مریدان دی . هډې صاحب په اصل دشلګرو، دکابل په تندر سازی کښې هم څه مده اوسیدلی دی بیا دجلال آباد په (هډه) کښې اوسیده، چه هم هلته د (۱۳۱۹ھ)

---

(۱) ددې کتاب یو نسخه چه د رمضان نامی لغمانی په خط په (۱۳۳۷ھ) کښې لیکل شوی ده ما لیدلی ده. (رشتین)

په حدودو کښې وفات او مزار یې اوس دخاصو او عامو خلکو مرجع دی هلهی صاحب یوښه کره عالمؤ، یو لوی کتابخانه ورځخه پاته ده مگر دپښتو یا په کوم بل اثر یې علم نه لرو ،

دهلهی صاحب جهادونه او کارنامې هم په ملي چاربیتو کښې ستایل شوی دی .

مانکي ملاصاحب : دی شیخ عبدالوهاب نومېده یو مشهور روحاني سړی او دسوات صاحب خلیفه او مأذون وو ، او ډېر مریدان یې درلودل ، ده دهلهی صاحب سره ځینې بحثونه او مناظری درلودې . په دې بحثونو کښې ددی مریدانو څخه قدر افراطونه کړی دی ؛ چه هغه له اصلي مقصد څخه ډېر لیری ښکاری .

ملاصاحب په پښتو نثر کښې د (عقایدالمؤمنین) په نامه یو وړوکی رساله هم لری چه په دی جملو شروع کیږی « که چادرنه پوښتنه وکړه چه بنده دچا یې ورته وایه چه بنده دالله تعالی یم چه یودی شریک نه لری ځمکی او اسمانونه ئې پیدا کړی دی ټول مخلوقات ئې پیدا کړی دی زه ئې هم پیدا کړی یم »

ملاصاحب په (۱۳۲۲ه) کال کښې وفات شوی دی .

کجوری ملاصاحب : دده نوم ضیاءالدین او د کجوری په ملاصاحب مشهور وچه د لغمان په ( کنځ ) کښې اوسېده . یو متصوف عالم سړی او دهلهی صاحب د طریقی په سلسله کښې داخل و ملاصاحب په پښتو او فارسی کښې اشعار هم ویل . شعری تخلص یې « واعظ » و، وایی چه دده په کتابخانه کښې ډېر پښتو او فارسی دیوانونه موجود دی . ده په پښتو کښې د رحمان بابا اشعار ډېر خوښول . د مرگ ئې تقریباً دیرش کاله کیږی . دا دده بیته ئې ولولی ؛

مونځ هغه دی چه معنی ته یې حضور روی لکه داچه یې له خدای سره مذکوروی

هم یې ښه قیام قعود په ښه شعور وی چه دانه وی ښکته پورته په تش تور ځی

ملا مشک عالم : اصل نوم یې دین محمد او په « مشک عالم » مشهور ، په قام اندړ ، او یو مشهور مجاهد او غازی سړی دی د (۱۲۹۶ه) کال په غزا کښې یې ښه ښه خدمتونه کړی دی وایی چه دی هم دسوات صاحب له مریدانو څخه دی . استوگنه یې (شلگر) کښې وه داسې مو اوریدلی دی چه په عربی کښې یې ځینی نوره آثار هم درلودل . غرض داچه یو لوی پښتون عالم او روحانی سړیؤ ؛ چه دوطن په ملی خدمتونو کښې یې پوره برخه اخستی . ده دی هم په ملی چاربیتو کښې ډېر ستایل شوی دی .

قاضی عبدالقادر پشاوری : (۱) په قام یوسف زی او دقاضی فضل قادر زوی و ، په خپل وخت کښې یو زبردست فاضل عالم او دپوهی وفکر خاوند بلل کیږی ، ده په پښتو ، انگریزی ، فارسی او اردو ژبو کښې ښه مهارت درلود او په دې ټولو کښې ښه لیکونکی و ، د امیر شیرعلیخان مصاحب ، عسکری منشی ، او دهغه له خواد (ښوونکی) په لقب سرفراز و . دهغه وخت د ټولو شاهی لښکرو د معلمیې رتبه یې لرله . دا سړی دامیر شیرعلیخان ددوری په علمی او ادبی بیداری او دپښتو ژبی د ژوند په نهضت کښې لویه برخه لری ، خصوصاً دعسکرو د تعلیم او پوهی دپاره یې ډېر خدمتونه کړی دی او په دی مقصد یې ډېر انگریزی کتابونه او انگریزی قوماندې په ډېره خوږه او درنه ژبه په پښتو ترجمه کړی دی . ددغه وخت اکثر عسکری

---

(۱) د آریانا مجله شماره ۳ سال ۲

کتابونه یا دده تالیفات دی او یادده په نظر او اصلاح جوړ شوی دی. په (شمس النهار کښې یې ډېرې خطابی او وعظونه شته، لهٰذا چه ده په دغه وخت کښې د عسکرو او خاص بیا د پښتو دپاره زیات خدمت کړی دی وایی چه څو جلده عسکری کتابونه، بولی او عسکری اصطلاحات یې په پښتو کړی وو، مګر له بده مرغه چه هغه آثار اوس ورک او بې پتی دی.

صرف یو کتاب یې چه د پیاده د قواعدو او قوماندو په باب کښې دی موجود دی، د نمونې په ډول یې یو څو مثالونه د لته راوړو لومړی کاردلاس - وروقدم - قدم اوزد پښه په ځای ورو تنګ جوړول د دالګی په یو ستی صف - در یږ قدم لند قدم پشا په وروژر قدم. ګرز ېدل په وقت د تنګ - سم ودریدل په وقت دودریږد و تنګ په غبر ګ - ز نګون کښېږد - یو قدم پشا -

سید جمال الدین افغان، د دې دوری له نوموړو خلکو او پوهانو څخه یو سید جمال الدین دی چه په هر ځای کښې یې د کمال او لویی آوازې خور دی دا د اسلام ابغه د مشرق نمر او اتل د افغانستان په تاریخ کښې لوړ مقام لری دده د عالی افکار ورڼا په هر ځای خوره او هر چیری تری خلق مستفید شوی دی. سید د کونړ له سیدانو څخه دی ده په کابل او هند کښې تحصیلات کړي دی او لومړی د امیر دوست محمد خان په دربار خلقو کښې داخل و بیا د امیر محمد اعظم خان په زمانه کښې وزیر او د امیر شیر علیخان په وخت کښې هم لوی کاردار و دوطن د ترقی د علم او پوهی د زیاتوالی په باب کښې یې ښه ښه پرو ګرامونه جوړ کړی او د پادشاه حضور ته یې وړاندی کړی وو. چه د امیر شیر علیخان دوخت زیات اصلاحات ورته راجع کیږی سید بیا خارج ته ولاړ - په هند، مصر، ایران، عربستان، ترکیه، روسیه، فرانس او انګلستان کښې و ګرځید او په هر ځای کښې یې د خپلو افکار وله تبلیغ څخه خلق مستفید کړل؛ مسلمانانو ته یې د بیداری چغی و کړی، په مصر کښې یې نوی روح ورپو کړ، ترکان یې وخوځول. د هند غوزونه یې ویش کړل. په ایران کښې یې د خپل هیبت او د بدبی آوازه خوره کړه جریدی او مجلی یې جوړی کړی او په دې صورت یې د خپل مسلک په خپر ولو شروع و کړه. سید په درسته دنیا کښې د یو بیدار باعزم سپیڅلی اوصاف پښتون په نامه معرفی شو مګر عمرور سره وفا و نکړ او د خپل پاک مقصد یعنی د اسلام د یووالی په لاره کښې په (۱۳۱٤) کال په ترکیه کښې وفات شو، چه آخر پس له (٤۷) کالو څخه دده تابوت او مړی د ۱۳۲۳ ش کال د جدی په ۱۰ له ترکیی څخه کابل ته راوړل شو او د لته د خپل وطن په خاوره کښې مدفون شو، د سید په مشهورو آثارو کښې یو (تتمة البیان فی تاریخ الافغان) دی نور مستقل آثار ډېر نشته دی په ډېرو ژبو لکه پښتو فارسی ترکی عربی او فرانسوی پوهېده او په دې حصه کښې یې ښه شهرت پیدا کړی و.

حاجی محمد اکبر: په قوم هوتک او د قندهار یو معروف سړی دی چه د امیر شیر علی خان په زمانه کی ژوندی او د پوهی او ادبی ذوق خاوند و د (۱۲۹۸ هق) په حدودو کښې له وطنه فرار شو او بیر ته د (۱۳۰٤ هق) په خواوشا کښې قندهار ته راغی او هوري وفات شوی دی ده په پښتو شعر کی ښه طبع درلوده او ځینی اشعار ئی پاته دی چه له هغو څخه یوه پښتو منظومه عریضه ده چه د امیر عبدالرحمن خان حضور ته ئې لیکلې وه ده د پښتو د کتابونو کتابخانه درلوده او د پټی خزانی قلمې نسخه هم دده په خواهش په (۱۳۰۳ هق) کی نقل شوې ده چه د دغه نسخی له رویه دغه د پښتو ادب مهم کتاب په کابل کښې چاپ شو،

ملا غلام جان : د لغمان و ، دامیر عبدالرحمن خان د دربار پښتون لیکوال او په هغه عصر کې ژوندي و ، د ده له پښتو آثارو څخه د هغه عصر دوه منثور کتابونه دي چه یو د امیر عبدالرحمن خان سوال وجواب دولتي او بل د ده نصیحت نامه ده چه دواړه د غه مرحوم لیکوال په پښتو ترجمه کړي او چاپ شوي دي

مولوي عبدالرؤف : (۱) د امیر حبیب الله خان د زماني او هغه د دربار یو پښتون عالم او د علامه حبیب الله کاکړ نمسی دی په عربي او فارسي کښې آثار لري . د قرآن حافظ هم و او په ادبیاتو کښې ئې ښه دسترس در لود ده تفسیر افغاني په نامه یو پښتو تفسیر شروع کړیو خو نا تمام ځینې پاتې شوي دي یو کتاب ئې د کشکول په نامه هم لیکلی دی چه د متفرقو مضامینو مجموعه ده او پښتو برخه هم لري دی په (۱۳۳۳ هـ) کښې وفات شوی دی ، دا مرحوم په (۱۳۲۳ ق) د سراج الاخبار لومړی موسس او مدیر و .



غلام محی الدین افغان
د پښتو د ادب تاریخ ۱۳۲ مخ

غلام محی الدین : افغان ، اصلاً د قندهار او یو پښتون لیکوال او پوه سړی و تحصیل ئې د پښتو ربه علاقو کړی دی د امیر حبیب الله خان په عصر کښې ئې ژوند کاوه ، په (سراج الاخبار) کښې ئې ځینې پښتو اشعار نشر شوي دي له اشعارو څخه ئې معلومیږي چه دی یو روښ فکره ویش پښتون او د یو دردمن زړه خاوند و .

افغان د امیر حبیب الله خان په وخت کښې د دار المعلمین مدیر هم تاکل شوی و دی د پښتو ژبې د ژوندانه په تحریك کښې لمړی حقدار ګڼل کیږي دی په (۱۳۳۹ هـ) کال وفات شوی دی ده په کلام کښې اصلاحي او تنقیدي افکار او د وطن د مینې جذبه لیدل کیږي دا دوه بیتونه ئې ولولی !

زړه زما ډك دی له مینې دوطن      خپل وطن ما ته عزیز دی له خپل تن

چه د چا په سر سودا دوطن نه وي      سر د ده دی مستحق د بریدن

دافغان د کمال او علم په باب هم یو ښه شعر ونه ویلی دی :

بی کمال د با کمال کله همسر دی      هم قیمت کله ګوهر سره حجر دی

(۱) سراج الاخبار ۵ کال .

با کمال سړی په مثل د پاد شاه دی — په ظاهره که مفلس او قلندر دی
که لباس د بې کمال وی د زربفتو — دا یې ځل دی د حریر و هغه خر دی
که لباس د با کمال وی د کرباسو — کمال ده لره خلعت دی هم زیور دی
څوک چه نه لری کمال او وره افغانه — که غنی وی لا خو تا نه مفلس تر دی

افغان یوه ټوټه هم نثر د نمونې په ډول ور وسته وګوری، دا نثر د مفهوم په لحاظ یو خورا قیمتی شی دی. چه د یو پښتون د پښتنې احساساتو رښتیانی نمایندګی کوی، او په سراج الاخبار کښې د اعلان په ډول نشر شوی و:

اول مقصد مو د اعلان دا دی چه زمونږ مبارک ژبه رواج پیدا کی او هر څوک دی د ترقی د پښتو ښه ښه مضامین و لیکی او په واسطه د دی اعلان ټولو پښتنو ته خبر ور کوم که څوک زما او یا و بل چا ته د پښتو په مضامینو باندی څه ایراد لری هغه دی خپله مدعا په پښتو کښې و لیکی او د سراج الاخبار مدیر صاحب ته دی را و لیږی.

که بنده د هغه له جوابه عاجز شې، هغه ته به (۵۰) روپۍ په طور د انعام ور کړم او وعده هم شپږ میاشتې ده (۱)

مولوی عبدالواسع: د ۱۴ پېړۍ د اولی نیمی له مشهورو عالمانو څخه دی تر ۱۳۳۷ و سته د «پښتو مرکې» مشر و. په فارسی ئې څینې کتابونه لیکلی دی د پښتو مرکې د پښتو ګرامر او د لغاتو کتاب د ده په تصویب او لاس لیک نشر شوی دی او په لیکلو کښې به ئې هم شریک وی دی خورا لوی عالم او په پښتو او پارسی او عربی کی لیکوال او شاعر و، په خپل و خت ئې د پښتو په خدمت کښې ښه برخه اخستې ده. او د پښتو د یوی لمړنی رسمی او ادبی مرکې د مشری واګې ئې په لاس وې. دی په (۱۳۰۸ ش) په کابل کی د بچه سقو په امر وژل شوی دی د ده له پښتو آثارو څخه یو پښتو تفسیر شته، او هم یو ئې کتاب حکمت اسلامی په فارسی کښلی دی

محمد زمان خان: د سردار غلام محمد خان طرزی زوی او د پښتو مرکې اول عضو د پښتو مرکې د لغاتو «او یوازینی» پښتو کتاب ئې په (۱۳۱۴ هـ) کال په لاس لیک چاپ شوی دی. شاید په لیکلو کښې ئې هم برخه ولری

عبدالوهاب: د پښتو په مرکه «کښې رکن او ترجمان و. په کامه کښې ئې استوګنه کوله دی هم د «پښتو مرکې» د کتابونه په لیکلو کښې شریک معلومیږی د پورته درې تنو ښاغلو د نثر په نمونه کښې له یوازنی پښتو څخه دا یوه ټوټه را اخلو

«پښتون ای زما مین وروره! بویه چه کښیځ د خوبه ویښ شی، او د سو کی بیا لمونځ په لمونځی کښې و کی. د مور او پلار او د ښوونکی او د مشرانو مخوری وغواړی و پښتان مخ او نمری سپیڅلی وساتی او لوستځی ته چه ځی په لار کښې خری (۲) پازی و نه کی» دا نثر ځکه چه تعلیمی دی نو جملې یې وړې وړې دی او بیا د «معرفة الافغانی» نثر ته ورته دی، سو چه او خالصه پښتو ده او پردی الفاظ نه لری.

مولوی تاج محمد: د خپل وخت یو پیاوړی او زبردست عالم دی چه په مهتمم صاحب مشهور و په پښتو او فارسی، انګریزی، عربی او اردو ژبو باندی ښه پوهېده. دی په مهمندو کښې

---

(۱) سراج الاخبار ۶ کال ۲۳ شماره (۲) خری = بد - پازی = کاروونه:

اوسېده عمریې په تبلیغ ، وعظه نصیحت تعلیم اودرس ، جهاد اودخلقو په اخلاقی او اجتماعی اصلاح کښې تېر شوی دی ، دپښتنو دپوهې اوصحیح تعلیم آرزومن و اوپه دې لار کښې ئې زیات کوششونه کړی دی دی تقریباً په (۱۳۴۴ هـ) کښې وفات او دجنوبي په خوست کښې مدفون دی . څلور قلمي کتابونه ئې چه په مختلفو ژبو دهر ډول مضامینو مجموعی دی یادګار پاتې دی دیو کتاب دغرض په باب کښې داسې لیکي :

دا کتاب مې جمع کړ دپاره ددې که چېرې څوك غواړي چه په دې لارې تلل و کاندي او څوك بیانه مومي چه لار ورته وښيي نودا کتاب زما به هغه ته لارو ښئي ) .

قاضي خیرالله پېښاوري . داسړی هم دپښتو دخدمت په لار کښې حقدار ګڼل کېږی دپښتو

---

دافغانو یو کتاب ئې دخیراللغات (۱) په نامه په اردو ژبه لیکلی دی مګر نور څه معلومات ئې په لاس نشته د ۱۴ پېړۍ داولی برخې لیکونکی معلومېږي .

سلطان محمد خالص : په قام بارکزی اوقندهار له پوهانو څخه و دامیر شیر علیخان په

---

دوره کښې ئې ډېر وخت په کلات حکمراني کوله ده دتاریخ سلطاني په نامه دپښتنو یو تاریخ لیکلی دی چه اول جلد ئې چاپ شوی دی خالص دفارسي ژبي شاعر و ، دپښتو اشعار ئې معلوم نه دي ، یو پوه پښتون لیکوال ئې بللی شو .

عبدالعلي مستغني : په قام ورد ګ دی . په فارسي او پښتو ښه شعر وایه ، دسراج الاخبار

---

دوخت له شاعرانو او ادیبانو څخه دی اوخورا ډېر اشعار لري دمرګ ئې تقریباً (۱۰) کاله کېږي دی اول دفارسي ادبیاتو معلم او بیا په ادبي انجمن کښې عضو شو .

مولوی عبدالمجید : (۲) په قام اتمانخیل دی . یو عالم بیدار اودیو دردمن زړه خاوند

---

دی په وړو کوټوالی هندوستان ته ولاړ ، هلته ئې تحصیل و کړ ، بیا دپېښور په (مشن کالج کی) دعربي پروفیسر شو ، دی دپښتنو دمشاهیرو او نومیالیو په سلسله کښې ځینې تالیفات لري یو له دغو څخه چه مونږ ته معلوم دی : د(جمال افغاني) کتاب دی دا کتاب ئې دعلامه سید جمال الدین افغاني په سیاسي او نورو حالاتو کښې اوږدی په اردو لیکلی ؤ ، او بیا ئې په خوږه پښتو ترجمه کړ . ده دخپل نامه سره باجوړی هم لیکلی دی دمولوی عبدالحمید «جمال افغاني کتاب د پښتو په نثر کښې یو خورا غنیمت کتاب ، او دسید جمال الدین افغاني په باره کښې په پښتو ژبه یوه لومړی تذکره ده . دا کتاب داسلام په مد و جزر کښې یوه ښه لچسپه مقدمه هم لري . ددې کتاب یو څو جملې دا دي : «په دې پرآشوب اوتنزل زمانه کښې هم خدای یوه داسې زړور دسته هستي پیدا کړه چه په یو لاس کښې ئې دسیاست توره او په بل کښې قرآن ؤ اودمغرب نه تر مشرقه پوري ئې تمامه زمکه متحر که کړه . دهغه ددماغي شغلونه داسلام مړي شوي سروتکې لښږی ابرې ګرمې شوې ، داغیبي امداد دخدای مجسم رحمت څوك ؤ ؟

دا دسید محمدعبده مصري استاد سید جمال الدین افغاني ؤ »

---

(۱) وایي چه دا کتاب په پېښور کښې چاپ شوی دی .

(۲) کتاب جمالي افغاني طبع اګره ۱۹۲۱ ع .

ملامحمد : په قام صافي دی ، دامیر عبدالرحمن او امیر حبیب الله خان په وخت کښی عرض بیگی او افغانی نویس (دپښتومنشیؤ) دارنگک د « پښتومرکی افتخاری » عضوهم ؤ په سراج الاخبار کښی ئی دپښتو ځینی اصلاحی اشعار نشر شوی دی دپښتو مرکی په ځینو کتابو کښی دده لاس لیك هم شته . ملامحمد په (۱۳۰۵ش) کښی وفات شوی دی وایی چه دی یو قلمی دیوان هم لری .

پیرمحمد (منشی) داسړی هم یو پښتون لیکوال او دقلم خاوندی . ده له انگریزی څخه ددا کتر (جمیس کنتلی) یوښه کتاب په پښتو ترجمه کړی دی . دا کتاب (زخمیا نوته هدایتونه) نومیږی او په (۱۹۱۰ع) کال په لاهور کښی چاپ شودی . منشی پیرمحمد په (پاراچنار کښی د منځنی مکتب سرمعلم ؤ . ددغی ترجمی په سر کښی د (سکماتې نسکریف نومی یوانگریز نوم هم شته ، مگرغالبه داده چه دا کتاب ټول د پیرمحمدترجمه ده اوددغه انگریز نوم ورسره په کمه بله وجه ملگری شوی دی .

قاضی عبداللطیف : داسړی د یوی علمی کورنی یو عالم سړی او اصلاً دسوات دعلاقی د(کالوچ) نومی ځای دی . دده (تفسیر تیسیر) په نامه دوه جلده کښی یو پښتو تفسیر لیکلی دی چه اول جلد ئی په (۱۳۳۹ه) کښی تمام شوی دی . دا تفسیر ئی دسوات والی ته منسوب کړی دی په پښتو کښی یو لوی کار او مهم خدمت گڼل کیږی .

سیدمحسن : دامیر حبیب الله خان په وخت کښی دقندهار د دارالحفاظ مدیر ؤ . په عربی ، فارسی او پښتو کښی لیکونکی ؤ په هغه وخت کښی ئی دقندهار دمبارکو مزارو نو په باب په څو زره بیته کښی یوه رساله لیکلی وه . وایی چه په پښتو کښی ئی روانه طبع ارله . دی په (۱۳٤۱ه) په قندهار کښی وفات شوی دی (۱)

محمدیعقوب فراهی : دفراه نورزی دی . چه په (۱۲۸٤ه) کښی زیږیدلی ؤ . یو عالم او پوه سړی او په فارسی او پښتو کښی ادیب او شاعر ؤ په فارسی کښی زیات آثار لری . وایی چه دپښتو دخاصو لغاتو یو کتاب ئی لیکه مگر نیمگړی ځنی پاته شو . فراهی د ښې قریحی او قوی حافظی خښتن ؤ .

دده دیو شعر یو څو بیته دادی :

| | |
|---|---|
| زه عاجز بنده د خدای یم | تل په حمد و په ثنا یم |
| خیل معبود پدار نگک ستایم | ثنا ستاده لویه خدایه |
| چه خاکی آدم پیدا شو | پیغمبر پر دې دنیا شو |
| په صفت دارنگک گویا شو | ثنا ستاده او یه خدایه (۲) |

## په پښتو کښی د خارجیانو تالیفونه

لکه چه معلومه ده ددې دورې په ابتدا کښی اروپایان دافغانستان خواو شاته رارسیدلی دی ، په دغه وخت کښی او له دغه وخت څخه راپه دې خوا ځیر مستشرقین پښتو ژبی ته متوجه شوی او په دې ژبه کښی یې زیات کتابونه لیکلی دی . که څه هم ددوی دا کوششونو له خپلو مقاصدو

(۱) دحبیبی دپښتو دشعر تاریخچه (۲) دکابل مجله (۱٤٤) شماره

او سیاسي غرضونو څخه خالي نه وو؛ مګر بیا هم د ذخیرې د زیاتوالي په لحاظ د قدر وړ دي او ځوانانو چه وروسته یې په لنډه صورت بیان کړو، مګر د لته مونږ یوازې هغه د لاندې و چه د پښتو په ګرامر لغت او ادب کښې یې څه لیکلي دي :

ګولډن شتد : (۱) یو جرمني مستشرق دی او ومبی سړی دی چه د پښتو په لغاتو کښې ئې یو کتاب لیکلی دی. دا کتاب په (۱۷۹۱ ع) په (پترز بورګ) کښې چاپ شوی دی. مګر نایاب دی.

کلاپراټ: ده د پښتو د ګرامری ساختمان په باب کښې یو کتاب لیکلی دی چه مستر (ډورن) لیدلی وا او وایي چه له غلطیو ډک دی. دا کتاب په (۱۸۱۰ ع) کښې چاپ شوی دی.

برنارډ ډورن: دا سړی روسی او د پښتو د یو لغت لیکونکی دی چه په (۱۸۴۵ ع) په (پترسبورګ) کښې طبع شوی دی او یو بل اثر یې د پښتو د پخوانو منظومو او منثورو آثارو انتخابات دي. چه (کریستوماتی آف دی پښتو) نو میږی.

راورټی: یو مشهور انګریز مستشرق دی په پښتو کښې ډیر آثار لري د پښتو د لغاتو یو لوی کتاب یې لیکلی دی چه په (۱۸۵۶ ع) په لندن کښې چاپ شوی دی. په دغه وخت یې د پښتو په صرف او نحو کښې هم یو کتاب تالیف کړی دی، د دې ګرامر په مقدمه کښې د پښتو او پښتنو شاعرانو په باب ډیر ښه معلومات شته. راورټی د پښتو د پخوانو کتابونو د نظم او نثر ډیر انتخابات هم جمع کړي او د (ګلشن روه) په نامه یې نشر کړي دي. دی یو منول پښتو (محاورهٔ پشتو) هم لري او په پښتو کښې د اسیپ حکیم قصه هم د ده د ا ترجمه په (۱۸۷۱ ع) په لندن کښې چاپ شوې ده.

دی د پښتو د خصوصیاتو او ادبیاتو په باب هم یو کتاب لري چه طبع شوی دی.

راورټی وایي چه له ما نه وړاندې میجر «لیچ» او کپتان (وګهان) هم د پښتو وا ړه واړه ګرامرونه لیکلي دي.

ګایګر المانی: د پښتو په فیلالوژی کښې یې په (۱۸۹۳ ع) کال یو رساله لیکلې ده او د پښتو لغات یې د اوستا او سانسکریت سره مقابله کړي دي.

هانری والټر بیلیو : انګریز دی، په پښتو کښې یې دوه مهم آثار یو لغت او بل ګرامر لیکلي دي چه په (۱۸۶۷-۱۸۶۸ ع) په لاهور کښې طبع شوي دي.

ډومانووچ : یو روسي مستشرق دی، چه د پښتو ګرامر او فرهنګ یې په روسي ژبه لیکلی او په (۱۹۰۸ ه) په تاشکند کښې طبع شوی دی.

ټرومپ : جرمني دی، د پښتو یو ګرامر یې لیکلی دی چه په (۱۸۷۳ ع) په لندن کښې طبع شوی دی.

---

(۱) د آریانا مجله اول کال ۶ شماره

واهن: د پښتو د گرامر لیکونکی او انگریز دی، گرامر یې په لندن کښې په (۱۸۶۰ ع) چاپ شوی دی:

مستر ودغن: (۱) ده هم د پښتو یو گرامر لیکلی دی.

کوکس: انگریزی داود پښتو گرامر یې په (۱۸۱۱ ع) په لندن کښې طبع شوی دی.

لاریمر: دی هم انگریز دی، د پښتو نحو، او دوزیرو د پښتو گرامر یې لیکی دی دواړه په لندن کښې طبع شوی دی.

دارمستتر: فرانسوی دی یو کتاب یې د پښتو په ادبیاتو کښې (د پښتو نخوا د هار و بهار) په نامه په (۱۸۸۸ ع) کښې چاپ کړی دی. دا کتاب دوه برخې دی. لومړی برخه یې د پښتو فقت اللغته او فقه الصوت دی او دوهمه برخه یې د پښتو بدای دی.

سی ای بیدولف: انگلیس دی یو کتاب یې په ادب کښې د خوشحال خان او د (۱۷ قرند اشعارو په نامه) په (۱۸۹۰ ع) کښې چاپ کړی دی.

هوگس: د پښتو یو گرامر یې لیکلی دی چه مستر بیدولف یې ستاینه کوی.

روس کیپل: د پښتو یو گرامر اری چه په (۱۹۲۲ ع) په لندن کښې طبع شوی دی. دی هم انگلیس دی اریومتول پښتو یې هم جوړ کړی دی.

گلبرتهسن: د پښتو د محاوری لغات یې جمع کړی او په ۱۹۲۹ ع کښې یې طبع کړی دی د پښتو ژبی په نامه هم یو کتاب لری.

پادری هیوز: د پښتو د پخوانو نثرونو او نظمو نوانتخابات یې د (کلید افغانی) په نامه ټول کړی او په لاهور کښې یې چاپ کړی دی.

مارگن ستړن: ناروېژی دی، د پښتو په ایتمولوژی (اشتقاق) کښې یو کتاب لری. او په خوشحال خان او دده په اشعارو یې هم یو کتاب لیکلی دی.

مالیون: د پښتو ملی قصی یې لیکلی دی.

اوالد: د پښتو په باب یې یو کتاب لیکلی دی.

گرارسن: د پښتو په تحقیق کښې یو کتاب لری،

وی‌ها نری: د «پښتو مطالعاتو په نامه» یو اثر لری (۲)

برتلز روسی: دا یو معاصر مستشرق دی چه د پښتو په ساختمان یې یو کتاب لیکلی دی.

پښتو مجموعه (۳) دا کتاب ۲۶ مخه دی او دا برخې لری: د پښتو گرامری قواعد، د پښتو دادب نمونې، د مخزن الاسلام او دیوان رحمان خلاصه، پښتو لغات له انگریزی ترجمې سره پښتو الفبا. دویل له مصدره دافعالو اشتقاق دا کتاب د لندن په موزیم کښې شته، مگر مصنف یې نه دی معلوم (زما په خیال چه کم انگریز لیکلی دی.)

---

(۱) د رضوانی دگرامر مقدمه.
(۲) آریانا اول کال ۶ شماره په ی معلوماتو کښې د نباغی زمریالی له مقالو څخه استفاده شوی ده.
(۳) فهرست بلو مهارت.

## ددې دوې پښتنانه پاچاهان اوددوی پښتو پالنه

## دمحمد زو کورنۍ

### امیر دوست محمد خان :



امیر دوست محمد خان

دپښتو دادب تاریخ ۱۳۸ مخ

امیر دوست محمد خان د محمد زو دپاچاهۍ موسس اولومړی پاچادی محمدزی دبارکزو یوه پښه ده چه پهدرانو کښې یږی. امیر دوست محمد لومړی ځل په (۱۲۴۲ ھ) کښې پاچاشو، لهدې تاریخ څخه دافغانستان پادشاهی دسدوزو نه محمدزو ته ورغله، مگرپس لهدغه وخته سدوزی شاهزادهگان یوخوابل خوا خوارهشول، شاه شجاع انگلیسانو ته ورغی اوبیایې په افغانستان حمله وکړه په (۱۲۵۵ھ) یې قندهار ونیو کابل تهیې مخهوکړه دلتهیې امیر دوستمحمدخان مقابله ونهکړه شوه کابل یې پرېښود بخارا ته ولاړ اوشاه شجاع بیا په کابل پاچاشو. څه موده وروسته امیر دوست محمد خان په (۱۲۵۸ھ) کال بیا په تخت کېناست اوتر (۱۲۷۹ھ) پورې یې پاچاهی وکړه، امیردوست محمدخان دامنیت په برقرارۍ کښې ښه کوششونه وکړل چه دافغانستان یو مشهور پاچا گڼل کیږی.

**پښتوادب:** دامیر دوست محمد خان په وخت کښې دپښتو دادب ښه تازه اوله ډېرو خو شنوا بلبلانو څخه ډك وو، دشعر او ادب مینه هرځای خوره وه، دده دوه ورونه سردار مهردل خان اوسردار پردل خان دادب مینان او دپښتو ښې شاعران وو.

پښتنانه ادیبان اوشاعران به ئې نمانځل اوددوی قدراو احترام به ئې کاوه، دادبی ټولنو سره ئې شوق دراود. کوم وخت چه سردار مهردل خان په قندهار کښې وه نو دهغه ځای ادیبان لکه میرزا خان، صدیق آخونزاده اونوربه همیشه دده پهځای کښې راټول او په ادبی بحثونو کښې به سره شریك وو، نو ویلی شوچه ددغو سردارانو توجه او مینې پهخپل وخت کښې پښتو اوپښتو ادب ته ښه کومك رسولی دی. په دغه زمانه کښې دپښتو آوازې هرځای خورې اوتر لیرې لیرې ځایو پورې خلق به دغه مینه کښې ډوب وو.

امیر شیرعلیخان، د امیر دوست محمدخان له مرګه نه وروسته په (۱۲۷۹ﻫ) کښې د
پاچاهۍ پر پلاز (تخت) کښېناست او تر (۱۲۹۶ﻫ) پورې ئې پاچاهي وچلېده: که څه هم
په دې منځ کښې په (۱۲۸۳ﻫ) کښې امیر محمد افضلخان هم یو کال، او څه شپې امیر محمداعظم خان



امیر شیرعلیخان:

د پښتو د ادب تاریخ ۱۳۹ مخ

هم پاچاهي کړې ده مګر هغه
څه دومره مده نه وه. د امیر شیرعلیخان
په وخت په هره شعبه کښې ډېر
اصلاحات شوي دي او د ده دوره
د بیدارۍ او نوي حرکت دوره بلل
کېږي. د ده په وخت کښې
منظم عسکري ترتیب او د هغوی
د تعلیم دپاره ښه ښه کتابونه
له انګریزۍ څخه ترجمه شوي دي
د امیر شیرعلیخان د وخت لوی
کار پښتو ژبې ته زیاته توجه
او اهمیت ورکول دي: کوم
خدمت چه ده پښتو دپاره کړی
دی هغه په تړابده د تاریخ په
پاڼو کښې یادیږي د ده په زمانه
او پاچاهۍ کښې پښتو عسکري
ژبه شوه، د عسکرو ټولو لیې
او قوماندې عسکري لقبونه
د منصبدارانو نومونه او داسې نور فوځي اصطلاحات په پښتو ژبه وو او ښتل
چه تر اوسه څم په هغه حساب جاري دي. په دې باب کښې د ده کلک حکم داؤ: چه ټول نظامي
مشقونه دې په افغانستان کښې په پښتو وي. عسکري تعلیمات نامې. لښکري فرمانونه
د قواعدو کتابونه او داسې نور ډېر شیان د ده په امر له انګریزۍ څخه په پښتو ترجمه شول
د عسکرو د عصري تعلیم دپاره ئې یو لوی عالم قاضي عبدالقادر پشاوري راغوښتی و چه د شاهي
لښکرو د ښوونکي په نامه سرلوړی و نوموړي شو چه د پښتو په لار کښې د امیر شیرعلیخان
خدمتونه ډېر قدر وړ دي کاشکې که پخوانو پاچاهانو هم دغسې په کلکه اراده پدې
لار کښې قدمونه اخستي وای. پدې وخت کښې د ملکي لوړو مامورینو نومونه هم په پښتو
او وښتل لکه: صدر و عظم = لوی ټول مختار. مستوفي = لوی ملک. د بیر ا لملک. لوی
کښیل. خزانه دار کښل. لوی ټولوني او داسې نور. د امیر شیرعلیخان د زمانې بل لوی او مهم
کار د اخبار جاري کول دي د ده په وخت کښې (د شمس النهار) په نامه یوه هفته واره
جریده ډېره بریه چاپ په (۱۲۹۰ﻫ) کال چاپ او نشر شوه. وایي چه شیرعلیخان به د
پښتو ادب سره مینه لرله او د پښتو اشعار به ئې اوستل او ځینې پښتو لنډۍ هم ده ته منسوبې

دی‌دده په‌وخت کښی دپښتو دشاعری بازار ښه ګرم ؤ . ډېرو شاعرانو پدغه وخت کښی دده ستاینه کړی ده لکه دوست محمد کاکړ ، فیض محمد او نور .

امیرعبدالرحمن خان : دامیر افضل خان زوی دی، چه‌دامیر شیر علیخان څخه وروسته په (۱۲۹۷ ه) کښی باچا اوبیا په (۱۳۱۹) کښی وفات شو ، پدی منځ کښی څه لږه موده امیر محمد یعقوب خان دامیرشیرعلیخان زوی هم باچاهی کړی‌ده . امیر عبدالرحمن خان یو سخت زړی باچاؤ . دسر کشانوغوږو نه‌ئی تاو کړل‌او کافرستان‌ئی‌رعیت کړ مګرنورو خواؤته‌ئی چندان توجه‌نه‌ده کړی . دده په‌دربار کښی هم پښتانه عالمان لکه مولوی عبدالرؤف اونور موجودو ملا غلام جان لغمانی هم‌دده ددربار له لیکو الو څخه ؤ . دامیرعبدالرحمن‌خان‌او هندد وایسرای‌ترمنځ‌چه‌کم سوال وځواب شوی‌ؤ،هغه‌ملاغلام‌د(سوال جواب دولتی) په‌نامه په‌پښتو نثرترجمه کړی اوپه (۱۳۰۳ه) کښی چاپ شوی‌دی . امیر عبدالرحمن خان د تاج التواریخ پنامه تارنج لیکلی دی‌او په پښتو یوه نصیحت نامه‌هم‌اری‌چه‌په سیاسی رنګ کښی ده‌او په (۱۳۰۳ه) چاپ شوی ده .

امیرحبیب الله‌خان : دپلار دمرګ نه‌وروسته په (۱۳۱۹ه) کال په تخت کښناست‌او تر (۱۳۳۷ ه) پوری باچاؤ دښه په‌مزه باچاهی کړی ده مګر خپلوا کی ئی نه اراوه . دامیر حبیب الله‌خان وخت د،تعلیم زده کړی‌او نورو لحاظو نوله‌مخه دبیداری . اونوی حرکت وخت دی پدی وخت کښی مکتبونه،ځینی کارخانی‌او نورشیان جوړ شوی‌دی‌دده په‌امر د(سراج الاخبار) جریده‌جاری شوه‌چه افغانستا نه‌ئی زیات فکری‌اوعرفانی خدمت وکړ، پښتو هم‌پدی‌وخت کښی دخپل ژوند په یوه نوی دوره کښی قدم کښښود ، دسراج الاخبار په‌پا ڼو کښی دپښتواشعار ، دپښتو‌مقالونه‌اودنثرټوټی لیدلی کیږی اودا شایداومړی اخبار وی چه‌پښتو ئی په‌خپل پا نو کښی ځای‌ور کړی دی . دامیر حبیب الله‌خان په‌وخت کښی پښتو تعلیم اهمیت هم‌پیدا کړ . یعنی په‌مکتب کښی داخله شوه او‌ځینی‌تعلیمی کتابونه په کښی جوړ شول . پدی وخت کښی مولوی صالح‌محمدد پښتو لومړی کتاب ولیکه چه‌چاپ‌شواوپه مکتبو کښی په‌ویل کېده ، ددغه وخت مشهور پښتانه لیکوال غلام‌محی الدین ، مولوی عبد الروف صالح محمد خان (۱) ، ملا‌محمداوداسی نوردی . پدی وخت کښی له پښور نه‌هم یو اخبار « دافغان » په‌نامه نشرېده چه‌د پښتو برخه ئی هم‌اراله دا اخبار له (۱۹۱۱ع) کال څخه پخوا جاری شوی‌ؤ‌ددغه کال په‌یوه شماره کښی‌ئی دطرابلس په باب چه ټلی پری حمله کړی‌وه دسید راحت یو پر جوش شعر نشر شوی دی .

امیرامان الله‌خان : په (۱۳۳۷ه) دباچاهی پر تخت کښناست‌اوتقریباً لس کاله باچاؤ پدی وخت کښی مکتبونه ښه‌زیات شول ، پښتو‌ژبه څه‌قدر زیاته‌دمعارف په‌پرو ګرام کښی شامله‌شوه، یو مجلس د « پښتو مرکی » په‌نامه‌دوطن له‌ادیبانو‌اوفاضلانو څخه جوړ شو، چه دهری خوا یونمایندهٔ پکښی‌ؤ . دی مرکی دپښتو په‌خدمت کښی ښه‌حصه واخسته ، دپښتو قواعد ئی ولیکل، لغات ئی راټول کړل ، نوی نوی نومونه‌ئی کښښودل دپښتو پښوپه ، یوازینی پښتو‌ته اودلغاتو یو‌وړ کی کتاب پدی‌وخت کښی‌نشر شوی دی . وایی چه‌یو قاموس ئی‌هم

۴۲

---

(۱) اوس هم ژوندی اوپه کابل کښی دی .

لیکلی و مگر طبع شوی نه دی . (۲) پدې دوره کښې «طلوع افغان» په قندهار کې او «اتحاد مشرقی» په جلال آباد کښې جاری شول چه د پښتو مضامین به پکښې نشریدل . مولوی عبدالواسع عبدالوهاب محمد زمان او داسې نور د پښتو مرکې کار کونکی دد غه وخت پښتانه لیکوونکي دي .
پدې وخت کښې مولوی صالح محمد خان د پښتو د هم او دریم کتاب هم ولیکه دا کتابونه په تعلیمي پروګرام کښې داخل وو او په مکتبو کښې به لوستل کیدل او یو ئې د پښتو صرف و نحو هم لیکلی وه .

## دې دوری ادب ته یوه کتنه

د هرې دوری ادب د هغې دورې د خیالاتو، افکارو او نورو واقعاتو ماینده دی هره واقعه او هره پېښه په شعر او ادب کښې تأثیرات لري او ضرور د ادب په جامه کښې خپل رنګ ښکاره کوی په ور وسته کرښو کښې غواړو چه د دې دوری د ادب کم او کیف او نورو خبرو ته اشاره وکړو .

نظم، نظم د ادب یوه لویه برخه ده لکه چه ښکاره ده د پښتو نظم په دې څلورمه دوره کښې هم د دریمې دوری په شان چلیدلی دی په دې دوره کښې هم عشقي دیني قصصي او رزمي اشعار لیدل کیږي هو! حماسي او قصصي اشعار نسبتاً له پخوا څخه په دې دوره کښې زیات ښکاري چه مهمې وجې ئې دا دي :

۱ـ په دې دوره کښې د پردو سره ډیر جنګونه او جګړې شوي دي په دې جګړو کښې پښتنو شرانو او بزرګانو لویې کارنامې او تولو یکښې د اسلام په جذبه له سرونو سره لوبې کړې دي د دې واقعاتو د پښتنو شاعرانو په زړونو پوره اثر غورځولی دی او د جوش او غیرت نه ډک د پښتنو والی او ناریتوب، د غزاګانو او جنګونو د خپلو مشرانو د توریالی توب او مړانې اشعار ئې ویلي دي چه مونږ ورته رزمي اشعار وایو .

هغه اثر چه دد وهمې او دریمې دوری په ادب کښې د مغلو باچاهی او جنګونو کړی و په دې دوره کښې د غزاګانو په واسطه پیداشوی دی او جه ده چه د دې دورې په ملي ادب کښې ډیری حماسي او جنګی چاربیتی شته او ډیری تاریخي او رزمي قصیدې ویلې شوي دي لکه د غازی محمد جان چاربیته او د صاحبزاده او نورو بدلی،

۲ـ د قصصي او افسانوي اشعارو د زیاتوالي وجه البته چه د عامو او اکثرو خلقو میلان او رغبت دی لکه چه په دریمه دوره کښې موو ویل قصې د ساعت تیرۍ او مشغولا یو شی دی نو ځکه د خلکو میلان ورته زیات دی بل په دې قصو کښې د ډیریانو دیوانو باچاهانو او عاشقانو داسې دلچسپې او خوږی خبرې وی چه خلک ئې اوریدو ته شپې رونوی نو دا وجه ده چه پښتنو شاعرانو قصو لیکلو ته زور ور کړی دی و لی چه بازار ته هغه مال وړل کیږي چه خلک ئې خوښوي بل هر کله چه په فارسی او اردو کښې هم دا برخه زیاته رانولی وه نو ګاونډیتوب په وجه ئې په پښتو هم اثر پریوتی دی د دې دوری د پښتو آثارو او قصو د زیاتوالي بله وجه د چاپخانو ډیروالی هم کیدای شي مګر د دغه ډول کتابونو زیاته غلبه په پېښور کښې وه ځکه چه هلته د چاپخانو مالکانو د خپلو ګټو او پیسو دپاره پښتانه شاعران قصو لیکلو ته تیار ول او له دوی څخه به ئې

---

۲ـ د قلمي نسخې برخه ئې د ښاغلي حبیبي سره شته .

قصي غوښتلي، پرته له دې څخه مونږ په دې دوره کښې عشقي او ديني اشعار هم په هغه اندازه وينو چه دا د پښتو ژبې په خواني تأثير په وجه هم دا سي راغلي دي: هو اهر کله چه په دې دوره کښې د يورپ د نوي نهضت او تهذيب خبرې زمونږ غوږونو ته راورسېدې نو څه قدر د ځينو شاعرانو په کلام کښې د قوميت، مليت او بيدارۍ افکار هم وځلېدل، او لږ وده ئې موده شعر مطلع اوڼ چار بيتو سره بدل او په بل رنګ شو، مګر داسې اشعار اکثر (۱۳۰۰ هـ) څخه را په دې خوا يا په بل عبارت د امير عبدالرحمن خان د وخت څخه شروع شوي دي لکه د غلام محي الدين افغان او داسې نور و اشعار، او س د دې دورې د نظم ځينې کتابونه ښيو:

**قصصي**

د احمد ګل د نيمبولا قصه او د کوټوال قصه.

د ملا نعمت الله د ليلي او مجنون د نيمبولا او نيمبولاء د فتح خان د موسى او ګلمکۍ، جنګنامه د حاتم طائي، شاهنامه او الف ليلى قصې.

د ملا احمد خان د ممتاز، ورقه ګلشاه، امير حمزه، شهزاده بهرام او ګل اندامي، شهزاده شيرويه، او يوسف زليخا قصې

د احمد اخون خيل

د امير حمزه داستان

او داسې نور

**عشقي**

د سردار مهردل ديوان

د ميرزا حنان »

د سيد کمال »

د نوروز بهار نوروزي

د شير محمد ديوان

د نظر محمد کاکړ »

د محمد امان »

د احمد ګل »

د عبدالله »

د رضواني »

د احمد دين »

د شمس الفلك »

د احمد کلاچي »

**مذهبي او تاريخي.**

د عبد المجيد سيرة نبوي.

د حبيب الله منهاج العابدين.

د رسول داد درالبيان.

د دوست محمد بحر العلوم.

د « اخلاق احمدي.

د غلام محمد د اسلام مدوجزر.

د عبد الباقي تهذيب الواجبات.

د احمد د پچګي انيس الواعظين.

د ولي محمد د سوات صاحب مناقب

د فيض محمد روضة المجاهدين.

نثر: په دې دوره کښې د نثر کتابونه په قصصي، مذهبي تاريخي او تعليمي خوا کښې دي. د دې دورې نثر که څه هم د موضوعاتو په لحاظ څه ډېر فرق نه دې پيدا کړې مګر د لفظ په لحاظ پکښې ښکاره تغير او بدلون ليدل کيږي. په دې دوره کښې د ۱۲ پېړۍ له اول څخه د منشي احمدجان سبك ميدان ته راوتلي او مشهور شوي دي. لکه چه د مخه موويلي دي د منشي احمد د دې دورې له زبردستو نثر ليکونکو څخه دی چه د نثر طرزئې ساده، خوږ، په متلونو او محاورو ښايسته او خوندور دی مثلاً دا يوه ټوټه ئې ولولئ. چه د آدم خان د مرګ خبر و کر زېدا و درخوېږې خبره شوه نو سمدستي په ځمکه را پرېوته سترګې ئې حق ته ونيولې خپل پردي پوراټول شول- لاس پښې ئې ورته ومښل- سپېلنۍ ئې ورته لوګي کړل، نظرونه مات شول- او لنده دا چه دم، دعا، بند، تعويذ هر څه خلاص شول خو درخانۍ وه چه سا پکښې و نه غړېده يخه تخته شوه او تخته پاته شوه چا هوښيار بنده چه و کته نور و ح ئې پخوا الوتې و- دا خبره هم مشهوره ده چه دوی دواړه په مړونه قبر کښې يو ځای شوي دي خو دا راته هسې ديا رانو ګپ ښکاري- دا هم خلق وايي چه دا د م خان د قبر

ډکی نه چه څوك شهباز جوړ کړي نور باب ئې زر زده کېږي (۱)

قاضي مير احمدشاه هم دمنشي احمد دسك له قوي ملګرو څخه دی . داسبك تر اوسه پوري چلېږي البته که څه لږ ډېر تغير پکښې راغلی وی نو وی به -

ددې دوري يو مهم امتياز دادی : چه په دی دوره کښې دپښتو ژبې تعلم او ښوونې ته هم توجه ښوی ده ، دامير شير عليخان په وخت کښې د عسکرو ټول تعليم په پښتو ژبه کېده .

تعليماتنامې . قواعداو قوماندې ټې په پښتو واوښتې اودې ژبې ته يوه عسکري درجه ورکړه شوه په دې ډول دامير حبيب الله خان په وخت پښتو په مکتبو کښې داخله او په رسمي ډول پروګرام کښې شامله شوه او تعليمې کتابونه پکښې جوړ شول - هم په دې وخت يعنې د (۱۳۰۰ ﻫ) څخه راايسته په صوبه سرحد کښې هم پښتو ته يوه تعليمې توجه پيدا کيږي ځکه چه په دغو وختو کښې قاضي مير احمدشاه دپښتو يو ابتدائې ګرامرچه (وافيه) نومېږي دپښتو دزده کړې دپاره جوړ کړ ، په دې وختو کښې د لغاتو راجع کولو کوشش ته هم دخلکو پام شو او قاضي خيرالله په دې وخت کښې د (خيراللغات) په نامه يو کتاب وليکه .

پښتو مرکه : ددې دورې له مهمو کارو څخه بل دپښتو مرکې جوړيدل دی . ګمان کېږي چه دا به دپښتو يوه اومړۍ رسمي مرکه اودې ټولنه وې چه دپښتو په مرکز کابل کښې جوړه شوې ده ، په پښتو مرکه کښې دډېرو کسانو په واسطه دپښتو دلغاتو راټولولو ، او يو لغاتوايښوولو اود پښتو دقواعدو دترتيب اوليکلو دپاره ښه کوشش شوی دی ، لکه چه په دغه وخت کښې يو ابتدائي ګرامر د (پښتو پښويه) په نامه يو دلغاتو دوه کې کتاب او بل د «ديوازنې پښتو» څه برخه جوړه شوې او چاپ شوې ده . په پښتو مرکه کښې دهرې خواپو يو سرې موجود و ! چه دلغاتو په تحقيق کښې به ئې مرسته او کومك کاوه .

لنډه داچه دادوره او په تيره د ۱٤ پېړۍ اوله نيمه حصه دپښتو ژبې په ژوندانه کښې زياته برخه لري او ويلای شو چه په دې وخت کښې پښتو دپرمخ تګ او ترقۍ په لار روانه شوې ده او ښه ښه آثار پکښې ميدان ته راوتلي دي .

هو ! ددې دوري يو بل خصوصيت دادی چه په دې وخت کښې پښتو اخباري دنيا ته هم راوتلې ده ، يعنې دپښتو اشعارو ، مضامينو داخبارونو په پاڼو کښې خپل ځان ښودلی او څرګند کړی دی لکه چه دسراج الاخبار ، اتحادمشرقي ، طلوع افغان زړې پاڼې ددې خبرې ګواهي ورکوي ، ددې ټولو خبرو سبب البته چه حکومتي روزنه او پام لرنه ده ځکه چه هره برخه او خصوصاً تعليمي برخه بې دحکومت له پام لرنې څخه عموميت نشي پيدا کولای نو ويلای شو چه په دې دوره کښې دپښتو لږ و ډېره پرمخ تګ او ترقي هم دې شيانو ته راجع کېدای شي او په آينده کښې به ئې هم داشيان دمقصود پر اوته رسوي ، ددې دورې دنثر ځينې کتابونه دادي . دمرادعلي تفسير يسير ددوست محمد تفسير بدرمنير - دغلام محمد دمدوجزر مقدمه - دمنشي احمد تاريخ افغانستان ، تاريخ غزنوي ، ګنج پښتو . هغه دغه ؛ دقصه خوانۍ ګپ - دمير احمدشاه بهارستان او شکرستان افغانی يوازنی پښتو . دنعمان الدين ظفرالنساء عبدالمجيد جمال افغانی . د ملاغلام سوال

---

(۱) له قصه خوانۍ ګپ څخه .

جواب د سید محمد عمر گلشن اشعار افغانی - د محمد یوسف توبة النصوح - د سید احمد پښتو متلونه - د صالح محمد پښتو لومړی، دوهم او دریم کتاب او داسې نور په دې دوره کښې ځینې تاریخ کتابونه هم شته چه په فارسی یا عربی دی لکه د سلطان محمد تاریخ سلطانی - د سید جمال الدین تتمة البیان - د امیر عبدالرحمن تاج التواریخ

تبصره: که څه هم هر کار زمانی او وخت ته منسوبیږی یعنی محیطی او سیاسی عوامل په ډېرو شیانو تأثیر کوی. حتی چه ادب خو بیخی د دې شیانو تابع دی، مګر په ډېر افسوس وایو چه په پښتو کښې وړاندی ډېر آثار لیکل شوی دی لکن یو به هم د یو اجتماعی ضرورت له مخه نه وی لیکل شوی، زیاته توجه لکه چه په تېرو دورو کښې وینو، یا د تصوف خوا ته وه یا عشق او خط و خال ستاینه شو او یا په قصو او افسانو وختونه تیر بدل. د دې هری برخې د ډېر والی اسباب مونږ د مخه بیان کړی دی مګر دا نشو ویلای چه دغه اسباب بې وارې دومره مؤثر وو او ادب ولې دغسی په یو غیر اجتماعی ډول پاته شو؟ په هر صورت پخوا چه څه شوی دی، هغه شوی دی مګر اوس ښایی چه پس له دې زمونږ ادب مونږ ته یوازی د تېرو ګوتونو کیسا ستل و نه ښیئی بلکه باید چه زمونږ ادب ژوندی او د یو شریف او معزز ژوندانه لار ښوونکی وی، پخوانو شاعرانو چه په خوشی بی فایدو قصو ځانونه ستړی کړی دی له هغو نه اوس هیڅ فایده نشته د موجوده زمانی تقاضا داده چه شاعران او ادیبان اوس د نیمبولا نیمو قصی پرېږدی د پېریانو او دیوانو خیالی قصی نن ورځ د الوتکو الوتونکو بمونو راکټونو او اتومی بمونو په حقیقی قصو بدلی شوی دی، نو له دې کبله او سنی شاعران باید دا نوې قصی د شعر په الفاظو کښې بیان کړی او خلق له هم پکار دی چه په هغو خوشو قصو نور خپل وختونه عبث نه کاندی، په دې کښې هیڅ شک نشته چه په پښتو او پښتنو کښې پوره استعداد موجود دی. لکن افسوس دا دی چه له دوی څخه تر اوسه په یو اجتماعی صورت کار نه دی اخستل شوی، یو شی نه چا سم نه دی متوجه کړی، لارورونه چا نه ده ښودلی، دیوالی او راغونډولو کوشش ئې چا نه دی کړی، همدا وجه پخوا هر څوک خوار و وار په بېله بېله لاره روان وو. چا د عشق سندری ویلی، چا قصی جوړولی، څوک په ګوتونو کښې ناست وو، چا څه کول او چا څه؟؟ دغه شیان دی چه د پښتو د ادب اصلاحی، تنقیدی خواوی کمزوری پاتې شوی دی هو اوس څه قدر د امید رڼا ښکاره شوی او دیوالی او بیداری نښانی پیدا شوی دی او امید کیدای شی چه د نیمګړتیا به هم پوره شی مګر هله چه په پاک زړه قوی اراده په دې لاره کښې قدمونه واخستل شی.

## اوسنی دوره له ۱۳۵۰ھ ۱۹۳۱ څخه راپه دې خوا

### یا د نوی نهضت زمانه

دا دوره که څه هم په څلورمه دوره کښې حسابیږی، مګر هر کله چه له (۱۳۵۰ھ) څخه راپه ایسته د پښتو د ژوند په لاره کښې یو نوی حرکت لیدل کیږی، او د البته مده د پښتو د خدمت او آثارو د زیاتوالی له حیثه د پخوانی وخت په ډېره مونږ نوره ایسی، په دې لحاظ ښایی چه دا د وخت د پښتو پالنی او پښتو ادب په شاو خوا کښې څه نه څه ووایو، مګر لومړی غواړو چه دا د عصر پښتانه پاچاهان بیان کړو.



اعلیحضرت محمد نادرشاه
او محمد ظاهرشاه: لکه
چه معلومه ده: هغه وخت
چه امان الله خان
پاچاهي ګذارده شوه
او د کابل ښار د
(بچه سقاو) په لاس ورغی
نو په دې وخت کښې
اعلیحضرت نادر شاه
د وطن د نجات په نیت له
(پاریس) څخه راووځېد
د وطن سرحد و نو ته
راغی د غلته ئې د پښتنو په
مرسته جنګونه شروع
کړل، پس له لږې مودې
جنګ څخه ئې کابل
ونیو او په (۱۳۴۸ هـ)
کښې د کابل د پاچاهۍ
په تخت کښېناست.

اعلیحضرت محمد نادرشاه د پښتو د ادب تاریخ ۱۴۵ مخ

نادرشاه د خپلې بادشاهۍ په لږه موده کښې د وطن د آبادۍ، ګټې او بهبود، د خلقو د آرام، تعلیم او پوهې او نورو شیانو د پاره ډېرې غوره او حکیمانه نقشې او پروګرامونه جوړ کړل او په هغو ئې عمل شروع کړ. ده د وطن د لویو او وړو په زړونو کښې یو مخصوص ګرانښت او خوږوالی درلود چه هرچا ته محبوب ؤ: مګر له بده شامته چه دا نامدار او تدبیري بادشاه د څلورو کالو بادچاهۍ څخه وروسته په (۱۳۱۲ ش) کښې د یو بدبخت له لاسه شهید شو او پر ځای ئې اعلیحضرت محمد ظاهرشاه د افغانستان د پاچاهۍ واګې په لاس ونیولې، محمد ظاهرشاه د افغانستان یو ځلمی او خیرخواه پاچا دی. د اعلیحضرت محمد نادر شاه پر قدم روان او هغه د پروګرامونو په پوره کولو بوخت دی. په دې دوره کښې د وطن ټولې چارې د ترقۍ او پرمختګ په لورې روانې دي. او په ډېره بېړه د مقصود د منزل په لورې قدمونه اخیستل کیږي.

پښتو او پښتو پالنه: لکه چه په دې وخت په هره حصه کښې یو نوی نهضت حرکت او نوی لیدل کیږي د غسې د پښتو ژبې د ژوندانه په خوا کښې هم نوي ګامونه اخستل شوي او په دې کالبوت کښې د بیدارۍ نوی روح پو کل شوی دی، په دې دوره کښې د پښتو هنګامه زیاته او د بازار ښه ګرم شو. لمړی کار چه وشو هغه دا و چه پښتو په مکتبونو کښې په زیاته اندازه داخله شوه،

د تعلیمي کتابونو د لیکلو کوشش شروع شو. په اخبارونو، جریدو او سالنامو کښې د پښتو د ضرورت په باب ښه ښه مضامین میدان ته راووتل، د اخبارونو پاڼې د پښتو له مضامینو څخه ډکې شوې، او په دې صورت له هر کوټ، هر دیوال، هرې کوڅې، هر ځای څخه د پښتو پښتو آوازونه پورته شول.

هو: د اعلیحضرت نادرشاه قوي عزم او پیاکې ارادې په دې حصه کښې زیات کار وکړ، د دې شاهانه توجه او میلان په وجه ډیر خلك په شوق او مینه په دې میدان کښې را ګډ شول، د پښتو په اطرافو کښې یې په لیکلو، بحثونو او خبرونه او څېړنو ګوتې پورې کړې. ورو ورو په هره حصه کښې د کتابونو د لیکلو سلسله ونښتله، په معارف کښې رسمي کتابونه چاپ او په تعلیم کښې شامل کړی شول. د پښتو ویلو او لیکلو ته هرچا توجه وکړه او په لږه موده کښې د پښتو لیکوال او شاعران له امیدنه زیات را پیدا شول. تقریباً څورلس کاله پخوا یعنې په (۱۳۱۱ ش) کال په قندهار کښې د پښتو یو انجمن جوړ شو د پښتو دغه انجمن پوهانو او فاضلانو په مرسته



اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د پښتو د ادب تاریخ ۱۴۶ مخ

د پښتو خدمت ته ملا وتړله، او د کتابونو په لیکو بې لاس پورې کړ په دغه وخت کښې د پښتو یوه مجله هم د دغه انجمن له خوا راووته، او میاشت په میاشت یې نشریدل او خپریدل شروع شول، دې مجلې د پښتو د خدمت په خوا کښې ښه برخه واخسته او ګمان کاوه شي چه په افغانستان کښې به دا د پښتو لومړی مجله وي. دغه انجمن بیا په (۱۳۱۴ ش) کښې کابل ته راوغوښتل شو، دلته د کابل د ادبي انجمن سره شریك شو او د کابل مجله به یې نیمه فارسي او نیمه پښتو رواه.

او س هم کېږي او بس له دې هم کېدونکې دی ددې مجمل نظر څخه وروسته غواړو چه ددې عصر چاپ شوی کتابونه او تالیفات وښیو او په دې ډول خپلې وړاندې خبرې ثابتې کړو ؛

## په دې دوره کښې د پښتو چاپ شوی کتابونه

### الف ــ د لغاتو کتابونه

۱- پښتو سیند : د لغاتو لومړی جامع کتاب چه په دې دوره کښې لیکل شوی دی د پښتو سیند دی . ددې کتاب لیکونکی او مؤلف ښاغلی محمد ګل خان مومند دی ، د پښتو ژبې په دې نوی نهضت او ژوند کښې پوره حقدار ګڼل کېږي په دې لاره کښې یې هم په خوله او هم په قلم ښه ښه خدمتونه کړي دي . په قندهار کښې د پښتو انجمن جوړېدل د ده په کوشش او توجه سره وو .

« پښتو سیند » په پښتو کښې د محمد ګل خان اومړی کتاب دی دا کتاب په (۱۳۱۶ ش) په کابل کښې چاپ شوی دی ، د لغاتو معنی یې په فارسي ده

۲ ــ سفیڅلی پښتو ، دا هم لغت دی چه په دې وخت کښې جوړ شوی دی . ددې کتاب ترتیب پردی ډول دی چه اصل ردیف وار لغات یې په فارسي دي او د هغو په مقابل کښې یې پښتو لغات راوړي دي . تقریباً اس زره پښتو لغات پکښې دي دا کتاب په ۱۳۱۷ هـ په قندهار کښې چاپ شوی دی

۳ ــ اس زره لغات دا کتاب په (۱۳۲۰ ش) . کابل له پښتو ټولنې څخه نشر شوی دی د لغاتو معنی او تشریح یې په فارسي ده او د پښتو د چېږي لغت په نامه یادېږي : لیکونکی یې محمد اعظم خان او د پښتو ټولنې نور ملګري دي .

٤ ــ پښتو اصطلاحات او محاوري : د پښتو د اصطلاحاتو او محاورو مجموعه ده چه په دغه پورته سنه کښې پښتو ټولنې نشر کړې ده لیکونکی یې ښاغلی ( نوري ) دی ، دا کتاب که څه هم هو پښتو لغات نه دي مګر د لغاتو په سلسله کښې شامل ید او شي .

### ب ــ ګرامري کتابونه

۱ ــ معلم پښتو : په قندهار کښې د پښتو انجمن له خوا جوړ شوی او په (۱۳۱٤ ش) کابل هم هلته نشر شوی دی ژبه یې فارسي ده ، د ابتدایي زده کوونکي د پاره ښه دی .

۲ ــ پښتو ښوونکی : محمد عثمان پښتو یې لیکونکی دی چه څه موده پښتو انجمن رئیس او بیا د تعلیم او تربیه په ریاست کښې عضو دی په پښتو کښې د ځینو کتابونو خاوند دی ، پښتو ښوونکی په (۱۳۱٦ ش) په لاهور کښې چاپ او له کابله خور شوی دا کتاب دوه جلده دی او د مبتدیانو د پاره ښه دی .

۳ - خود آموز پښتو : دمو لوی صالح محمد له خوا په (۱۳۱۳ش) په قندهار کښې چاپ شوی دی .

٤ - دپښتو ژبې لیاره : دالو مړی ګرامردی چه په پښتو ژبه لیکل شوی دی ، په دې ګرامو کښې پوره خواری شوی ده . جوړوونکی ئې محمد ګل خان مومند دې ، دا کتاب په ۱۳۱۷ش کال کښې چاپ شوی دی . ابتدائی کسان ترې ښه فایده نشی اخیستلی .

۵ - قواعد پښتو : دا ګرامر محمد اعظم ایازی په فارسی لیکلی او په ۱۳۱۸ش په کابل کښې طبع شوی دې . دنوی طرز دپیروی کوښښ پکښې لیدل کیږی . ښاغلی ایازی له پخوا څخه دپښتو په خدمت کښې شریك دی اول دقندهار په پښتو انجمن کښې عضو ، بیائې په پښتو ټولنه کښې عضویت دراود اوس دمعارف په تعلیم او تربیه کښې په خدمت بـوخت دی ،

۶ - پښتو کلی ۶ ستمبر : یو درسی ګرامردی د کورسونو د تعلیم دپاره په پښتو لیکلی شوی دی لیکونکی ئې صدیق الله خان رښتین دی لومړی جزئې په (۱۳۲۲ش) کښې چاپ شوی دی .

۷ - لومړی لارښوونکی : دا هم یو درسی لومړنی ګرامردی ، دکورسو دپاره دیو تطبیقی او تحلیلی ګرامر په حیث « رښتین » لیکلی دی چه د(۱۳۲٤ش) په اول کښې دپښتو ټولنی له خوا چاپ شو .

۸ - پښتو قواعد : دمعارف دمتوسطو مکتبو دپاره ښاغلی ایازی په پښتو لیکلی او په (۱۳۲٤ش) کښې دمعارف دوزات له خوا چاپ شوی دی .

۹ - دپښتو لوی ګرامر : دا دپښتو یو نوی او مهم ګرامردی چه په فارسی ژبه لیکل شوی دی او دپښتو په باره کښې ښه تحقیقونه لری . لیکونکی ئې صدیق الله خان رښتین او محمد شیر ګل خان دی دا کتاب اوس د کابل په مطبعه کښې چاپیږی .

## ج ـ تاریخی کتابونه

پښتانه شعرا اول ټوك : پښتو کښې دروستنی زمانی لومړی تاریخ دی چه په (۱۳۲۰ش) کښې دپښتو ټولنی له خوا نشر شوی دی . لیکونکی ئې ښاغلی حبیبی او نور لیکوال دی .

پښتانه شعرا دوهم ټوك : دا ټوك په (۱۳۲۱ش) کښې چاپ شوی دی لیکونکی ئې صدیق الله خان رښتین او نور لیکوال دی ،

په دغو دواړو ټوکو کښې د(۲۱۰) تنو شاعرانو بیان راغلی دی .

پښتنی میرمنی : دا کتاب په پښتو ژبه دافغانستان دښځو په بیان کښې ښاغلی عبدالرؤف بینوا لیکلی دی چه په ۱۳۲۳ کښې طبع او خپور شو . ښاغلی بینوا دپښتو یو مشهور ځلمی لیکونکی دی له څو کالو څخه دپښتو په خدمت کښې لګیادی په پښتو کښې ځینې نور کتابونه هم لری

پټه خزانه : دا مهم تاریخی اثر (چه ذکرئې دمخه راغلی دی) دښاغلی حبیبی دفارسی ترجمې او نورو مفیدو تشریحاتو او بیانو سره یعنی دده په تحشیه او تعلیق د ۱۳۲۳ ش په آخر کښې دپښتو ټولنی له خوا نشر او چاپ شو .

د پښتو داد بیاتو تاریخ: دا کتاب د ښاغلی حبیبی یو مهم اثر دی چه په څلور جلده کښي ئي د چاپو لو خیال اری او مړی جلد ئي چه د پښتو تاریخ تر اسلام دمخه ښیي د ۱۳۲۵ په سر کښي د اد بیاتو د فاکولتی له خوا نشر شو.

## د ـ ادبي کتابونه

۱ ـ پښتو ملتونه: د پښتو ملتونو یوه وړه مجموعه ده چه په ۱۳۲۷ ش کال له پښتو ټولنې څخه خپره شوه او امین الله خان زمریالی د محمد قدیر خان ترهکی په مرسته لیکلی ده ښاغلی زمریالی له اوله څخه د ادبی انجمن عضو او بیاد پښتو د ښاځنګي مدیر و، په سالنامو کښي ئي د پښتو په باب ښې ښې مقالې لیکلی دی، او پښتو یه خدمت کښي یو حقدار سړی دی.

۳ ـ داحمدشاه بابادیوان: په ۱۳۱۹ ش کښي د پښتو ټولنی له خوا نشرشو، ټولوونکی ئي ښاغلی حبیبی دی چه یوه ښه مقدمه ئي هم پري لیکلی ده.

۳ ـ ملی پسرلی: د ښاغلی حبیبی یوه کوچنی منظومه ده چه په قندهار کښي چاپ شوی ده.

٤ ـ دخوشحال او عبدالقادر دیوانونه: دا دواړه کتابونه ښاغلی حبیبی له قندهار څخه خپاره کړی دی چه د پښتو د ادب دپاره یو غوره اوډېر لوی خدمت دی.

۵ ـ بله دبو: دا کتاب د پښتو په نشر ښاغلی ګل پاچا الفت لیکلی او په ۱۳۲۰ ش کال کښي پښتو ټولنی نشر کړی دی، هرډول ادبی اونور مضامین پکښې شته، ښاغلی الفت د پښتو یو مشهور یوه لیکوال او له ډېر وخت څخه د پښتو په خدمت کښي مصروف دی، په پښتو کښي یې نور آثار هم لیکلی دی، اول په پښتو ټولنه کښي عضو و

٦ ـ پسرلی نغمه: د ښاغلی الفت یوه وړه منظومه رساله ده چه په ۱۳۲۰ کال کښي خپره شوی ده.

۷ ـ نوی ژوندون: د پښتو په نشر کښي د ښاغلی قیام الدین خان خادم اثر دی، ادبی ټوټې او ځینې نور ښه مضامین لري، په (۱۳۲۰ ش) کښي د پښتو ټولنی له خوا طبع او نشرشوی دی، ښاغلی خادم د پښتو له پخوا نیو پوهو لیکوالو څخه دی، د قندهار د پښتو انجمن له وخته په دغه انجمن کښي عضو و، څه وخت د پښتو ټولنی د تالیف او ترجمی د ښاځنګی مدیر، بیاد اتحاد مشرقی مدیر شو، په پښتو کښي نور کتابونه هم اري او په دې لار کښي یو مشهور او حقدار سړی دی.

۸ ـ ملی سندري: د پښتو د ۳ زرو لنډیو مجموعه ده چه ښاغلی نوري ټوله کړی ده، دا کتاب په (۱۳۲۳ ش) کښي د پښتو ټولنی له خوا نشر شو، ښاغلی نوري د پښتو ټولنی په اخوانو کار کښانو څخه دی، چه قندهار په پښتو انجمن کښي هم عضو و

۹ - ملي هنداره : دښاغلي نوري اثر دی چه اول ټوك يې په ۱۳۱۷ ش کښې چاپ شوی دی او دوهم ټوك يې په ۱۳۲۵ کښې چاپ شو. دپښتو دځينو ملي قصو او افسانو مجموعه ده.

۱۰ - دمينې مينه : دمحا صرو شاعرانو دا شعارو يوه کوچنۍ مجموعه ده او د راديو دنشرياتو له خوا چاپ شوې ده.

دغنمو وږی : دښاغلي بينوا يوه وړوکې منظومه ده چه د احمدشاه بابا دتاج پوشۍ منظره بيانوي، د ۱۳۲۵ کال په سر کښې دپښتو ټولنې له خواه چاپ شو،

پښتو سندرې : دښاغلي الفت يو ادبي اثر او په پښتو سندرو يو ښه تبصره ده. په ۱۳۲۵ کښې دپښتو ټولنې له خواهم ځانله او هم د کابل په مجله کښې نشر شو.

دپير محمد کاکړ ديوان : دا ديوان دښاغلي بينوا په تصحيح او مقدمه د کابل په مجله کښې نشر يږي.

## ه فقه اللغة او فيو لوژي

فقه اللغة پښتو : دښاغلي يعقوب حسن خان اثر دی چه په فارسي يې ليکلی او په (۱۳۱۷ ش) کال طبع شوی دی.

لغوي څېړنه : دښاغلي الفت اثر او په (۱۳۲۰) کښې طبع شوی دی. په پښتو کښې دفقه اللغې لومړی کتاب دی.

## و - له خارجي کتابو څخه ترجمې

دکوچيانو اخلاقي پالنه : دا کتاب ښاغلي خادم ترجمه کړی او په ۱۳۱۷ کښې پښتو ټولنې نشر کړی دی.

نيکبختي : دا کتاب له انګريزي څخه په فارسي او له فارسي و څخه په پښتو ترجمه شوی او په دغه و روانه سنه کښې پښتو ټولنې چاپ کړی دی ادښاغلي ارسلان سليمي ترجمه ده.
سليمي دپښتو يو ښه اخبار ليکو نکی دی، پخوا دخان آباد دا تحاد مديرو

پهځان باور. له انګريزي څخه دښاغلي سليمي ترجمه ده چه د اصلاح په روزنامه کښې نشر شوې ده.

دژرندانه لارې : دا کتاب دنقولای حداد مصري د (مناهج الحيات) پښتو ترجمه ده چه ښاغلي عزيزالرحمن سيفي ترجمه کړې دی او د کابل په مجله کښې خپريږي. سيفي دپښتو يو تکړه ليکونکی دی، پخوا دپښتو ټولنې عضو و

## ز - ډرامې

په پته د پټو پلټنه : د اصلاح د دايرې له خوا د ۱۳۱۸ څخه پخوا نشر شوې ده او د برهان الدين کشککي اثر دی بله ډرامه يې «پټه مينه» نوميږي په دغه روزنامه کښې ځينې نورې ډرامې هم نشر شوې دي لکه «دوه سره مين ورونه» چه محمد رفيق فانع ليکلې ده.

## ح ـ تعلیمي

پښتو خبرې: یو درسي کتاب دی، د معارف د وزارت له خوا په ۱۳۱۵ کال کښې چاپ او خپور شوی دی او ښاغلي پاینده محمد زهیر لیکلی دی.

پښتو ژبه: دا هم یو تعلیمي کتاب او دوه جزء دی. د ښاغلي مولوي صالح محمد اثر دی چه په ۱۳۱۶ کال کښې د پښتو ټولنې له خوا طبع او نشر شو، ښاغلي صالح محمد د پښتو یو ډېر پخوانی لیکوونکی دی، د امیر حبیب الله خان د زمانې څخه را په دې خوا د پښتو په خدمت کښې لګیا دی. په هغه وخت کښې یې د مکتب حبیبیه د پاره پښتو کتابونه جوړ کړي وو. دی څه موده په پښتو ټولنه کښې مبصر هم و.

لیکښوونکی: د پښتو انشاء ده، ښاغلي نوري لیکلی او د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوې ده

پښتو کلي ګاني: د پښتو کلي ګانو یوه تعلیمي سلسله ده چه د پښتو ټولنې له خوا د پښتو د کورسونو او پښتو زده کوونکو د پاره جوړه شوې ده. تر اوسه پورې شپږ جلده چه ټول دوولس جزء کېږي چاپ شوي دي، لومړی او دوهم جلد یې ښاغلي زمریالي او ښاغلي خادم، څلورم جلد یې ښاغلي بېنوا، پنځم جلد یې ښاغلي الفت او شپږم جلد یې «رښتین» لیکلی دی.

د پښتو قرأتونه: د پښتو قرأتونه په معارف کښې لیکلي شوي دي دا سلسله د اول ټولګي له قرائت څخه تر لسم ټولګي د قرائت پورې چاپ شوې ده، او په مکتبونو کښې ویل کېږي.

چه د پښتو د مشهورو لیکوالو آثار پکښې ټول شوي او جمع شوي دي ځینې قرائتونه یو یو سړي هم لیکلي او یا یې ترجمه کړي دي.

د معارف نور کتابونه: له هغه وخت څخه چه پښتو د معارف په پروګرام کښې داخله شوې ده نو د پښتو کتابونو د جوړولو د پاره په معارف کښې زیات کوشش شوی دی او کېږي. تر اوسه پورې د ابتدائي او متوسطه صنفونو ټول کتابونه په پښتو شوي دي. او تر نهم ټولګه زیاته جماعت پورې دا سلسله رسېدلې ده د دینیات، حساب، جغرافیه، تاریخ، ساینس، او داسې نور کتابونه په پښتو اوښتي دي او په ابتدائي صنفونو کښې لوستل کېږي. هر کله چه معارف د ټولو راتلونکو ترقیو مونځی دی؛ نو ځکه د پښتو تعلیم په مکتبونو کښې یو اساسي شی دی او د حکومت له خوا هم ورته زیاته توجه کېږي.

په معارف کښې ځینې نور پښتو کتابونه لکه د معلم لارښوونکی او داسې نور هم چاپ شوي دي لنډه دا چه پښتو په معارف کښې تر ډېره حده مخکښې تللې ده، زیات کتابونه پکښې لیکل شوي او جوړ شوي دي او نور هم دا کوشش جاري دی.

پرته له دې کتابو څخه چه بیان شول، په دې دوره کښې نور هم د پښتو زخت کتابونه (۱) ترجمه شوي او تالیف شوي دي، چه هغه اکثر قلمي دي او طبع شوي نه دي.

### په صوبه سرحد (پېښاور) کښې پښتو آثار

څه رنګه چه دلته د پښتو نهضت او ژوند شروع او جاري دی؛ دغسې په پېښور او صوبه سرحد کښې هم دا حرکت له څه مودې څخه لیدل کېږي. هلته هم څه نه څه د پښتو د خدمت په لار کښې کوشش روان دی، تقریبا اتلس شل کاله پخوا (د انجمن اصلاح افاغنه) په نامه

(۱) د پښتو د کتابونو لست د کابل په سالنامو کښې شته هلته یې کتلی شی.

یو انجمن جوړ شوی و، چه هغه انجمن د پښتو په خدمت کښې برخه اخستې وه او س د (ادبی جرگی) په نامه هم یوه ټولنه شته: چه د پښتو په خدمت کښې لگیا ده سربیره په دې له څه مدې څخه د ځینو په انکوړه کښې د «بزم ادب» په نامه یو جمعیت موجود دی او د پښتو په خدمت کښې لاس او پښې خوځوی. کوم پښتانه چه د خپلی ژبی خدمت ته متوجه شوی دی، نو په پښتو کښې بعضی کتابونه لیکلی دی چه دادی وروسته شوول کیږی.

لغات افغانی: د پښتو د لس زره لغاتو یو کتاب دی، چه سید راحت زاخیلی په اوردو ژبه لیکلی او په پښور کښې چاپ شوی دی.

گنجینهٔ افغانی: یو ابتدایی گرامر دی، قاضی رحیم الله د پښور د آیدری او سېدونکی جوړ کړی دی دا کتاب یې اعلیحضرت محمد ظاهر شاه ته منسوب کړی دی لکه چه وایی: دا ناچیز کوشش منظور کړی ظاهر شاه ته مستفیض تری همگی افغانستان کړی

پراورنیل د کشنری: د پښتو دیرش زره متلونه او محاوری پکښې جمع شوی دی او د قاضی رحیم الله تالیف دی.

مکتوبات افغانی: د قاضی رحیم الله اثر دی چه د پښتو مکتوبونو مجموعه ده او په پښور کښې نشر شوی دی. دا ظهار حقیقت. پښتو قاعده. ماډرن پښتو په نومونو نور آثار هم لری.

لغات انگریزی په پښتو: د میرزا سید محمد اثر او په ر و لینډی. کښې چاپ شوی دی (۱)

گلدسته: د پښتو په نثر کښې یو اجتماعی او اخلاقی کتاب دی. د پښور د چارسدې محمد اکبر خادم لیکلی او په (۱۹۳۷ع) کښې چاپ شوی دی.

ښکلی رسول: د حضرت رسول د اخلاقو او اوصافو بیان کښې د محمد خان میر هلالی تالیف دی او په پښور کښې چاپ شوی دی.

د سوات د ریاست تاریخ: دا کتاب په پښتو نثر د سوات د ریاست په تاریخ کښې سید عبدالغفور قاسمی لیکلی دی، او د (۱۳۵٦ھ) په حدودو په پښور کښې چاپ شوی دی په دې کتاب کښې د سوات د ریاست متعلق ښه ښه معلومات شته او یو خوږ تاریخی کتاب دی.

د دې کتاب پښتو خوږه او خوندوره ده. یوه جمله یې داده: «د سیدو شریف کټه چه کمو پښتنو ایښې وه، هغوی څه خبر وچه په دې کلی به د ترقی عظیم الشان دور راځی»

مسئلهٔ خلافت: دا کتاب ملک سید اخان شواری، دا بوالکلام آزاد له کتاب څخه په پښتو نثر ترجمه کړی او بیا یې (۲) طبع کړی او خپور کړی دی. دا کتاب د اسلام د حقیقت په بیان کښې یو غوره اثر دی.

پسرلی گل: یو خوږ ادبی منظوم کتاب دی چه ښاغلی عبدالله جان «اسیر» جوړ کړی او په پښور کښې چاپ شوی دی.

گل کوهی. ادبی مرغلری: دا دواړه دوه منظوم ادبی کتابونه دی چه ښاغلی فضل احمد کوهی لیکلی او په هند کښې چاپ شوی دی.

---

(۱) د ۱۳۱۸ کال سالنامه (۲) مجلهٔ سرحد.

جنګنامهٔ انوربي: دسيدراحت يو منظوم اثر دى چه دمشهور ترکي انور پادشاه دژوند حالات او دجنګونو بيان کوي. دا کتاب په پښتو کښې دنوي عصر يوه خوږه جنګنامه ده سيد راحت په پښتو کښې نور کتابونه هم لري لکه (دزړه درد ـ شهيد لېونی ـ داغستان راحت) مګر مونږ نه دي ليدلي.

ناول دماه رخ: په پښتو نثر د راحت الله «راحت» يو خوندور ناول دى. چه چاپ شوى هم دى. دا «راحت» غالباً هغه مشهور سيد راحت دى چه (جنګنامهٔ انوربي) ليکلي ده

خزان دافغان: يو پښتو نظم دى په قومي درد ليکل شوى او په پېښور کښې چاپ شوى دى،

حالات محمد: د پيدايښت نه تر وفاته پورې دحضرت محمد (ص) په حالاتو کښې يو لوى کتاب دى چه په (۱۳۵۲ه) په ډيلي کښې چاپ شوى دى, ددې کتاب مؤلف امير محمد نوميږي چه د پېښاور په (ترخه) کښې اوسي امير محمد په اردو کښې د پښتو يوه قاعده هم ليکلې ده.

دپښتو ډرامې: په پېښور کښې نسبت نورو کتابونو ته ډرامې ډېرې ليکلې شوي دي، څومره ډرامې ي چه مونږ ليدلي دي: هغه خوږې او خوندورې دي لکه درس عبرت او نورې کومې ډرامې چه مونږ ته معلومې دي او چاپ شوي هم دي دادي:

درس عبرت: دعبدالله جان «اسير» شهيده سکينه. خوږ ژوندون دا دواړه خوندورې ډرامې دي او عبدالخالق خليق ليکلي دي.

درد: دامير نواز جليا يوه وړوکې خوږه ډرامه ده چه نثر او نظم دواړه لري.

دوينو جام: دا ډرامه دمحمد اسلم ختک اثر دى نوې روښني او همت چه دواړه قاضي رحيم الله ليکلي دي جونګړه: ليکوونکى ئي عبدالاکبر «اکبر» دى پردې ډول ممکن نورې هم ډېرې وي،

تعليمي په تعليمي حصه کښې هم ځينې کتابونه ليکل شوي دي، او لکه چه معلومه ده داول. دوهم دريم. او څلورم جماعت قرائتونه د مکتبونو دپاره ښاغلي عبدالخالق خليق جوړ کړي او په پېښور کښې چاپ شوي دي ځينې نورې پښتو قاعدې هم په اردو ژبه جوړې شوي او نشر شوي دي،

اخبارونه: په صوبه سرحد او پېښور کښې د پښتو اخبارونه او مجلې له پخوا څخه شروع شوي او په دې حصه کښې ښه پرمخ تګ شوى دى.

مګر دهغه ځاى داخبارونه خبرونې يو اڅې په سياسي خواو کښې دي او نورو خواته يې ډېره توجه نه ده کړې د پېښور څومره پښتو اخبارونه او مجلې چه پخوا نشريدلي او ځيني اوس هم نشريږي دادي: دپښتون مجله (مؤسس او چلوونکی يې عبدالغفار خان دى) دا زاد پښتو مجله ـ دسرحد مجله زلمى پښتون دخيبر مجله دجمهوريت اخبار دانـکار اخبار پيغام سرحد دافغان اخبار دننېرون مجله (اوس نه نشريږي) دژوند مجله (له ډېر يلي څخه نشريږي)

دموجوده عصر دځينې ليکوالو او شاعرانو نمونه

په موجوده وخت کښې که څه هم ډېر ليکوال او شاعران پيدا شوي دي، او اشعار او آثار يې لېدل کيږي مګر مونږ دلته صرف دځينو يادوو کسانو نمونه اخلو چه په دې عصر کښې دشهرت

او د کتابونو او اثرونو خاوندان دي. او هغه دادي: محمد گل مومند میر سید قاسم. عبدالحی حبیبي ـ گل پاچا الفت ـ قیام الدین خادم ـ سید حسن مرحوم ـ حاجي ولي محمد (۱) مخلص مرحوم عبدالرؤف بینوا ـ عبدالرحمن پژواك ـ محمداعظم ایازي ـ محمدامین خوگیاڼي ـ سراج الدین سعید ـ شمس الدین مجروح ـ عزیزالرحمن سیفي ـ محمد یوسف ایازي ـ عبدالخالق واسعي ـ غلام جیلاني جلالي ـ محمد رسول پښتون ـ صالح محمد ـ برهان الدین کشککي ـ ارسلان سلیمي امین الله زمریالی ـ محمدعثمان پښتون ـ عبدالخالق اخلاص ـ محمد شیر گل خان ـ محمد گل نوري عبدالقدوس پرهیز ـ محمدهاشم پردیس ـ محمد نسیم نوري ـ محمد یونس مراد ـ غلام رحمن جرار ـ پاینده محمد زهیر ـ میراجان سیال ـ محمدعمر بلبل ـ محمدشریف جانان ـ رحمت الله ـ سید حسین رشاد او داسې نور. په موجوده میرمنو کښې حافظه په هرات کښې، او حمیرا او روح افزا په کابل کښې د پښتو لیکونکې دي.

## د پېښور د لیکوالو نمونه

د پېښور او صوبهٔ سرحد د موجوده وخت په مشهورو لیکوالو او شاعرانو کښې داور وسته ښاغلي مونږ ته معلوم دي (سیدرسول رسا ـ سیدراحت زاخیلي ـ قاضي رحیم الله ـ عبدالغفارخان ـ محمداکبر خادم ـ امیرهلالي ـ عبدالخالق خلیق ـ عبدالله جان اسیر ـ (مرحوم) صاحبزاده علي حیدر ـ فضل حق شیدا ـ سمندر بدرشوی ـ میا احمدشاه ـ امیرنواز جلیا ـ تاج محمد سرادیب سوات ـ فضل احمد افغان عبدالاکبرخان «اکبر» عبدالرؤف عندلیب ـ داودشاه برق ـ امیر حمزه شنواري ـ عبدالقادر عقیق زاخیلي ـ سید نصرالله ـ مفتي عبدالرحیم (وفات شوی دي)

حاجي محمدامین (د پېښور یو مشهور شاعر او واعظ دي) عبدالغفورخان خلیل ـ محمداجمل خان ختك منشي فاضل او پوهاند کوره کښې د «بزم ادب ناظم دي عبدالکریم اتمانزي (یو پوخ سیاسي نثر لیکونکی دي) د اکبر سیدانو ارالحق فضل رحیم «ساقي». شر رانبا دپري ـ سید عظیم شاه (داکوهی د بزم ادب مشراو ښه لیکونکی دي)

قاضي عطاءالله ـ شیر محمدمینوش داقبال د نظمونو په ترجمه کښې مشهور دي غلام سرور عبدالمالك فدا ـ محمد اشرف مفتون طوفان سرحدي ـ او داسې نور د پېښور په ښځو کښې الف جانه ختك ـ اقبال پروین یوسف زی، او داسې نورې د پښتو شاعرانې دي.

## موجوده نثر

نثر دادب یوه مهمه برخه او یو ضروري شی دي، یوږ به هغه وخت ترقي کولای شي چه نثر یې وسعت وموندی او د نثر لمن یې له هر ډول مضامینو څخه ډکه شي، د پښتو نثر په دې موجوده عصر کښې لکه چه گورو د ترقي پر لارو قدم ایښې دی هر ډول مضامین او نثرونه لکه تاریخي تعلیمي، ادبي اصلاحي، اجتماعي، فکاهي، سیاسي علمي او داسې نور پکښې داخل شوي دي د گرامري لغوي او دهرا مونثرونه هم پدې وخت کښې ورو ورو په ډېرېدو دي.

---

(۱) مخلص د قندهار یو نوموړي شاعر دي چه په ۱۳۲۲ ش کښې وفات شو او د اشعارو یو زبردست دیوان ورڅخه پاتې دي.

لنډه دا چه د زماني د غوښتني سره سم د پښتو په موجوده نثر کښې پوره تحول او بدلون راغلی دی او هر ډول کتابونه په کښې کښلی شوي او لیکل کیږي .

دنثر سبک ، د موجوده نثر سبک نژدې د منشي احمد جان روان کړی سبک دی ساده او روان په محاورو برابر په پښتو لغاتو ښایسته ، په خوږ واو لنډو جملو ښکلی دي وخت د نثر سبک ګڼل کیږي هو! لکه چه په هر وخت کښې ځینې کمزوري او خراب لیکونه وي په دې وخت کښې هم البته چه د غسې لیکونه شته مګر هغوته اعتبار نه ورکول کیږي دلته مونږ ځینې غوره لیکنې چه د قوي کسانو په واسطه چلیږي تر نظر لاندې نیسو او د دې عصر د سبک نمایندګي او د پښتو رپه خوا کښې هم خوازه لیکونه او قوي نثر لیکونکي شته ، مګر په عام لحاظ هغه د سبک د ښه والي خوا ته عمومي توجه نه ده شوې ، دا وجه ده چه په ځینې تحریرونو کښې د فارسي تر کیبونو رنګ معلومیږي بل د هغه ځای په نثرونو کښې د ګاونډه یتوب او نور نفوذ په وجه اردو او انګریزي کلمې هم راګډې شوي دي . مګر د دې ځای په لیک کښې بیا د عربي او د فارسي کلمو استعمال نسبتاً ډیر دی . که څه هم د پښتو د موجوده ژوند روح په ټولو پښتنو کښې پوکلی شوی دی او ټولو پښتنو ارادې که پر دې دې خدمت ته ملا تړلې ده ، خوسره د دې هم د پښتو د پالو او روزلو مهم مرکز افغانستان دی دلته د آثارو ډیر والي او د سبک ښه والي ته ښه توجه کیږي او دا کوشش جاري دی چه د پښتو یو خالص ، سوچه خوندور طرز او سبک پیدا او میدان ته راوځي او پښتو د ډیرو علمي آثارو خاونده شي سربیره د پښتو ادبي او تاریخي ژوند په لار کښې هم دلته ډیر کار او خدمت شوی دی .

علمي ترجمې ، د دې وخت په نثر کښې چه کوم مهم زیاتوالی راغلی دی ، هغه له خارجي ژبو څخه علمي او نوي ترجمې په دې خوا کښې هم ښایسته ښه کار شوی دی او له انګریزي ، فرانسوي ، اردو او عربي ژبو نه هر ډول مفید کتابونه ترجمه شوي او ترجمه کیږي دا ترجمې اکثري قلمي دي او چاپ شوي نه دي مګر یو لوی نقص چه په دې حصه کښې لیدل کیږي هغه دا دی چه ترجمې د داسې کسانو په واسطه کیږي (چه د هغو پښتو د پښتو پښتې ماتوي) البته د داسې ابتدائي خلکو (۱) ترجمې او بلې ژبې دا تر لاندې راوستل د ژبې ملامتول دي . د دې دپاره چه په دې کښې سړي پرې وځي د هغو کسانو د سبک پیروي پکار ده چه هغوي په دې لار کښې وړاندې دي .

او داستا ذې حق اړې داکسان ګه څه هم د ګوتو په شمیر دي مګر ښه والی او غوره والی د سر ونه په زیاتوالی نه دی ، بلکه کیدای شي چه د یوه غوره طرز د او پسللو سکه د یوه سړي پنامه ووهله شي .

اوس د دې عصر د نثر یو دوه نمونې وګورئ .

## اوله نمونه

### دغمجنو سره

دوسته ولې خفه یې ؟ پیسې نشته ؟ دولت نشته ؟ پورورې ؟ ښې ؟ سیالې نه ده برابره ؟ داتوځه خفګان دی ، خدای لاس درکړی . پښې درکړي ، عقل ښې درکړی ، فکر ښې درکړی کار وکړه ، کسب وکړه ، کوشش وکړه ، جدو جهد وکړه ، په ښه دستور او د ټینګ عزم خدای تعالی د هیڅا عمل نه ضایع کوي .

---

(۱) لکه د اخبارونو د ترجمو سبک او طریقه .

رفیقه! ولې داسې مړاوی یې؟ د نا کامۍ سره مخامخ شوی یې؟ کامیابي نه ده شوې، کوښښ دې وکړ او ځای ئې ونه نیو؟ دا نو څه خبره ده؟ خفه نو ولې یې؟ سبق واخله پند واخله عبرت واخله. دا د قدرت تعلیم دی، په تا کښې به نقص وي. ستا کوشش به په صحیح صورت نه وي. په قدرتي اساس به نه وي! څه به ځان کښې تغیر وکړه څه کار په فطرت برابر کړه بیا کوشش وکړه چه کامیاب شې او که نه نو ته خو بنده یې اسرداره! ولې غمګین یې؟ په څه فکر یې په څه خیال؟ د ملت له غمه؟ د قام له غمه! د وطن له غمه رښتیا ده نن ملت کمزوری دی! نن قوم ضعیف دی - نن وطن محتاج دی او دا د مسلمان د پاره، د افغان د پاره او د صاحب وجدان د پاره شرم دی. عار دی، غم دی، الم دی، مګر وګوره دا څومره خوږ غم دی؟ دا څنګه د مزې درد دی؟ په دې کښې څومره شیریني ده؟ څومره خوږ لذت ده او څومره صاف زړونه، سپیڅلي دماغونه له تا سره په دې غم کښې شریك دي او دا غم څومره خوږه نتیجه لري؟

قیام الدین (خادم)

## دوهمه نمونه

کښېنځ چه لمر لا تر اوله مځکه په خپلو سپینو وړانګو نه وه روښانه کړې ما له اوږدې څخه وشنو کښېنتو او کرلو مځکو ته ځیر ځیر کتا نه، د لمر لومړنۍ وړانګې چه پردې شنو باندې خپرېدې. هغه کوچني کوچني څاڅکي چه د شپې د ې شنو او زرغونو وښو په څنګ کې کښې نیولي وو. داسې به ایسېده لکه مرغلرې چه پر او رېدلي وي! زه د دې ښکلي مځکې په ننداره بوخت وم چه ناڅاپه یو څو کوچني هلکان راغله د وی زه له هغه طبیعي خونده چه د مځکو او وښو په ننداره پروت وم یو بل خوند ته چه هغه هم د پر زړه وړونکی و بوتلم! ما ولیده چه دا کوچني سپیڅي سپین پښتانه هغه کوې چه ژر مکتب ته ورسېږي سره د دې هم کله کله به زرغونو وښو کښې سره ټولېږي او د کوچنو تو په څېر یو خوږ اتڼ اچوي او په خوراتو یو او سپیڅلو ژبو به خپله ملي ژبه د بېرغ ترانه وایي خدای په رښتیا خوښېږي چه زه د ې زړه وړونکي منظر خورا محو کړم او په زړه کښې مې هغه آمال او هغه هیلې سره وښورېدې چه دا وطن او د خاوره او دا د پښتنو ښاد منه مینه ئې د دې کوچنو هلکانو وړاتلونکي ژوندون ته اړې ما د ځان سره وویل! خښتنه! دا خو د هغو مېړو او تور یالیو پښتنو زامن دي چه د تاریخ مخونه د دوی په مېړانه او ننګیالي تو ښایسته دي، او د دوی په بشر وکښې خو لا هغه د میرویس او غازي اکبر وینې په غور ځنګ دي

## دریمه نمونه

په داسې یوه زمانه کښې چه مشران په کښې د پېسې شنو خر څېږي، او د مشر کشر بیلتون نشي کېدې په مشر او د هغه په مشرۍ باندې خوله سپړدل د زړه سوده په لو تو یشتل دې خواوس یوه خبره ده چه مخې له اړا غلی د زمونږ پرې تو کل دی. مشرې د هر سړي په څټه کښې اخښلي شوي ده هر څوك غواړي چه د هغه شپه دې او په وي. داغو شي د هر چا خو ښې دې. دا بېله خبره ده چه د پیشو وریسې کومې پرایوزي د دنیا د مخ تنګ د پاره دا خبره لا د پره ضروري ده چه هر سړي د ې د بل نه د وړاندې تللو ګواخ لري او کم سړي چه دومره بې ښي شي چه لکه د شمشتي په خپل ځت کښې سر ننه ویستي مدام په خپل حال خوشحاله وي نو بېکار دی چه هغه د مخ سر ونغاړي او د اخیل ځای بل چا ته پرېږدي. د قومي ژوندون او لوړ تیا د پاره

په هر قام کښې د سرسړي يو کاردی خو لکه څرنګه چه د هر قام ځان ځانله سړيتوب دی دغه رنګ په سړي سړي کښې هم فرق دی. په سينه کښې د بر کبانه ی رغړی خو سير يکښې يو نيم پيښيږي. دغه رنګ په قومونو کښې په ډيرو خلقو کښې يو کس وی، چه هغه ته خلق د رانه ګوري دهغه خبره ورته د کانه ی کرښه ښکاري او دهغه په خولی خلق مدام ځانونه په سينه لاهو کوی د نيا ټل د داسی خلقو په ډاډ ګټه کړيده هغه فرونه چه د آسمان د لاندې تيږې لاړدي د دوی په ښو بريونی دی د داسی يو کس د سره خلقو مدام سل کسه صدقه کړی دی، د دې کسانو د مخه دا د نيا آباده ده. د دوی د مخ پرنيا. خان غريب امير و زير او زه او ته او بل ګرزو او د دوی دږ وند ورځ ورځ د دنيا د تار يخ ميا شتې او کلو نه وی

## پاکه پانه

پانې په څو څو قسمه دی د قرآن پانه، د کتاب پانه د ونی پانه، د ژوند پانه، د تما کو پانه او د چايو پانه، اګرچه په خپل خپل ځای په هره پانه کښې څه صفت شته ولی زما اميد دی چه نور ښاغلی به هم پوهه دی خبره کښې زما ملګری وی چه په ټولو پانو کښې د قرآن پانه ډيره پاکه او مبارکه پانه ده، خو ډيره مده کيږی چه سيلی زمونږ وطن ته يوه عجيبه غونډې پانه له چيرته نه راوړی ده دا وطن د دې پانې د ومره خوښ شو چه خپل ټول قام قبيله ئې په کله د ې وطن ته راوستل په لږ وو ورځو کښې ئې په ټول ملک قبضه وکړه او نوري ټولې پانې ئې شاته کړي، دا پانه د رنګه توره او د خوبه ډيره ترخه ده دې ته د چايو، پانه وائی دا نن سبا د هر چا د کور مېرمن ده، او د هر چا تن وجود دی. خلق دې ته دومره محتاجه دی چه بې د دې دا چاز ت نه د کوره بهرته نه شی وتلی په خوابه خلقو ختی سهر ستر ګی په جماعت کښې غړولی او د هر څه نه به ئې آګاه و د قرآن پانې ښکلو لې خو نن سبا دغه ځای د چايو پانې نيولی دی. او س هم خلق وختی پاڅی خو ستر ګی په چايو غړوی او تر څو چه ئې دا ښکل کړی نه وی نو د کور نه بهرته و تی نشی (عبدالکريم اتمانزی)

## موجوده نظم

لکه چه وينو يدې وخت کښې د پښتو نظم نويو فکرونو او خيالاتو ته په خپله غيږ کښې ځای ور کړی دی سره د دې چه زوړ رنګ او پخوانی خيالونه لا هم اېخې ورك ورك نه دی د عشق ناري او د مينې چغې لاهغسی شته، مګر بيا هم ځينی بيدار مغزه روښن فکر خلق موجود دی، چه هغوی د پښتو شعر په زاړه کالبوت کښې نوی روح اچول غواړی، نوی ترانی نوی نغمی ويل او له نوی رنګه خلق خبرول خپله وظيفه بولی دا وجه ده چه په موجوده نظم کښې ښې خوږې ملی، قومی، وطنی او اجتماعی منظو می ليدل کيږی د لفظ او ظاهر په لحاظ هم موجوده نظم څه نه څه نوی رنګ او نوی لباس قبول کړی دی، د دې وخت شعر او نظم له پخوانو پابند يو څخه آزاد دی په هر طرز، هر شکل او هر اندازه چه چايو خونه ورمو زون کلام وو ايه هغه نظم دی، نور حدا وحدود له منځه وتلی دی ځکه چه د ادمعنی عصر دی، پدې عصر کښې معنی مهمه ده، له الفاظو څخه معنی ځار ول د پخوانو کار و مګر بيا هم د پښتو نظم دمدنی دنيا له نظم څخه وروسته دی نو ښايی چه د انيمګړتياوی پوره او د پښتو د نظم دنيا رنګينه او ښايسته کړو پدی عصر کښې ملی او نا خوانه شاعران هم شته چه هغوی اکثر له ښارونو

او مدنی ځای پوښخه لری دی په ملی و زنو اشعار وایی، او د غیراو او چار بیتو سره غږی راکازی او س ددی ضرورت دی چه ښاروال (مدنی) او بانډه وال (غیرمدنی) شاعران سره غوږ ونه نیږدی کړی له دوی څخه فکرونه او له هغوی څخه ملی وزنونه واخلی، مطلب دا چه ښاروال په ملی وزنو اشعار ووایی او بانډه وال نوی خیالات په خپلو اشعارو کښې ننباسی نو هغه وخت کېدای شی چه مونږ د یو غوره ملی ادب خاوندان شو . اوس د موجوده نظم یو څو نمونې و گوری

## اوله نمونه

دوطن له خوا :

واوره ای پښتو نه زه میراث ستا د نیکو یمه        ستا ښکلی زانګو یم ادیره ستا د پلرو یمه
خاوری می مه بوله په ښه ستر که راته گوره نه        خاوری که هم یم ستا د نیکونو د سرو یمه
ښه ښایسته لعلونه سره یاقوت می په لمن کښې دی        ښکلی منظره له گلونو که د لید ویمه
ته می په خپل سوری کښې اوی کړی نازولی ئې        شین او سمسور باغ یم له گلانو او میوو یمه
ښه سپینی خوږی یخی او به می دشو دو پشان        تا سی ته در کړی مورد څولو پښتنو یمه
مینه دی اری زړه کښې امیدو نه خپل اولا دلره        ځکه زه نن تا ته په امید او په اسرو یمه
غواړم چه تا هم لکه د تېر و پښتنو په شان        وو ینم میدان کښې ننگیالی پښتو ارزو یمه
خاوره او هوا می له غیرت او ننگه ډه ده        گوا یی ننگ غیرت چه زه وزمه ستا سی دغرو یمه
کلک عزم له سره تېر پدل په خپل ناموس باندی        ښیمه پښتون ته ډک له دا سی تاثیر و یمه
څوک که می پوره حقیقت غواړی پسند رو کښې        زه الفت ستا یلی په خوږو خوږو بیتو یمه
( گل پاچا الفت )

دوهمه نمونه

چه بخپله مستقل یمه له ځانه        څوتر خو کړم دنورو تقلیدونه
زما شعر دی نسیم که کو هستا نه        ویښوی د پښتنو سپیڅلی زړونه
مداح نه یم چه په زیات صفت څوک ستایم        نه له چا څخه می هیله د دنیا شته
ځو ژوندی یمه رښتیا به وایم        په درواغو می له خولی کله ویناشته
قام به ویښ کړم لکه دم د مسیحا یم        له غلیمه زما کله څه پرواشته
تملق می منافی دی له وجدانه
مقید نه یم آزاد می دی بیتونه
دیار درته نه یم پروت په گدایی کښې        زرغونودرو کښې ښورم لکه باز
نه د شونډو په شراب یم په مستی کښې        له هر څه دوطن مینی کړم بې نیاز
د مطرب حاجت می نشته په نری کښې        چه په زړه کښې می شومیشت د وطن ساز
ملیت په کړم د نمر په څیر روښانه
نکړم نور د خال وخط زلفو غمونه
له هر لوری ور کوم سختی طعنی زه        کله تېز ترخه ویل کړم وملت ته
په پسته ژبه کوم دوی ته گلی زه        کله بولم خپل ملت خوی دوحدت ته

بیائې ستوری وائم زه په عظمت ته          وربه یاد کرم بیائې بت خوږې قصې زه
دا الهام مې راځي زړه ته له آسمانه
یاد دې پاکې فضا دې دا خوبونه          (بېنوا)

## دریمه نمونه

تېر په هېر وشمار کړه او ته پر بېرده پخوانۍ خبرې          ما بایندې خوږې لګي دا خیلې دځوانۍ خبرې
ذکر د آسونو د ښکارونو د بازونو کړه          هم د سپینو تورو توپکونو جهازونو کړه
بازیم الکه باز په غرونو ګرځم سېلانی یمه          لا خوږه زلمی یمه
پریږده داد مرګ سرې ستاینې د بوډاخبرې          پرېږده د ښلتون او د وصال او د آشنا خبرې
وخت د سپینو تور و د خریا او د شرنګار راغی          وخت اوس د مردې او د مردانو د غوغا راغی
توره د همت زما په لاس ده ابدالی یمه          لا خوږه زلمی یمه
اوی رباب سورکړه نوې دوردې نوی ترنګ غږوو          نوی جام پیدا کړه ای ساقي او نوی جنګ غږوو
ستا زاړه شراب زړې پیاله کښې اوس د څکو نه دي          نه ورته اعلوم نه وایې دا اوس د پېسونه دي
زه خود رنه لا دم زه سالم په زړه غمی یمه          لا خوږه زلمی یمه
تنګ ستا د کباب و د شراب و د محفل نه شوم          داخو سر دردي دي زه بېزار د دې غوبل نه شوم
نه ارومه نوری ستا د چنګ خوشې غزلې دي          ژوند یکښې هیڅ نشته دا مرګ ستړې ملې دي
لا په ما کښې ژوند دی زه د ژوند ښایسته کالی یمه          لا خوږه زلمی یمه
دا زما وطن دی دا وطن د ښو خو انانو پلار
دا ته توریالی ښایسته معشوق دی زن صفت دی خوار
دا ته کښې میرویس او خوشحال خان او احمد شاه پیدا
دا ته کښې محمو دا وهم غوري او هم شیر شاه پیدا
زه هم شیر بچی یم جنګیالی او ننګیالی یمه
لا خوږه زلمی یمه (سید رسول رسا)

## د پښتو د عامو ال سببونه

دا رانه معلو مه شوه چه پښتو په دې عصر کښې د ترقۍ په یوه مهمه دوره کښې روانه ده ډیر خلک د پښتو په خدمت کښې لګیا او د پښتو کتابونه او آثار ورځ په ورځ په زیاتیدو دي نو د دې عمومت مهم سببونه دا دي :

۱ـ د حکومت توجه او د حکومت له خوا پښتو لیکوالو قدر او نمانځنه
۲ـ د پښتو د کورسونو جوړول ، او په مکتبو کښې پښتو داخلول
۳ـ په اخبارونو او رادیو کښې د پښتو خپرونې او نشریات
۴ـ د جایزو او انعامونو جاري کېدل ،
۵ـ د مطبوعاتو د ریاست او پښتو ټولنې له خوا د پښتو په باب ښه ښه نشریات کول ،
۶ـ د پښتو خپله بیداري او تعلیم او علم ته مخه کول

په دې شان نور هم واړه غټ ډیر اسباب شته چه د پښتو په عامو الي کښې اثر اري او اوس د پښتو د عمومیت او رواج اثر په هر چاپریوتی دی ټول دفترونه دایرې ، موسسې او شرکتونه

